# افغانستان کالنی

د اطلاعاتو او کلتور وزارت

۳۶۹ ل ش

# پیل

داده دافغانستان کـالنی «۳۹» گـڼه هغووطنوالو ته چه دهیواد دترقیو اود نړی دبیلو احوالاتو د څرنګ والی دپو هیدلو سرهعلاقهاو شوق لری وړاندی کیږی .

لکه څرنګه چه دافغانستان کالنی په«۳۸»گڼهکی وعده ورکړه شوی وه چهدافغانستان کالنی اداره بهد افغانستان دمعمولو کالنیودخپرولو د څنګه دافغا نستان د بیلو شئو نو او پر مختیاؤ دمعرفی دپاره نوری رسالیاودضرورت وړ پامپلټونه هم خپاره کړی پهدی لړکی پهتیر کـالکی مـوږ څه ابتدائی اوآزمایشی قدمونه هم واخستل او لکه څرنګه چه معلومه ده په وروسته باته او مخ پـهانکشاف هیوا دونوکی دداسی ارمانو ختل یو بسیط او آسانکار نهدی کافی بودجه،وسیدلیپرسونل ، او نور ډول ډول سهولتونه او مرستی پهکار لری چهالبته ددغو مهمه اولویهبرخه زموږ په نصیب نه وه خو ددغه کاردپه سرته رسولو پهلارکی مو عزم ټینګ او نیتپاك ؤ نو دهمدغه لامله موځه بریالیتو بونه پهنصیب شول چهدهغو څخه داقتصادیکالنیدمطبوعاتو دسلمی کالیزی رساله ، خان او جهان ، او انګریزی خپرونه دیادولووړده .

دکالنیو خپرونه چه په افغانستان کی د(۱۳۱۱) ش څخه معموله شوی ده پهنړیکی دیر زوړ تاریخ لری خوپه اوسنی شکل اومحتویاتو دیوی نیمی پیړی را هیسی مروجه ده دروز نامچی ، اطلاع نامی ، راپور نامیاو سالنامی پهنومو پیژندله کیږی .

په لویو اومترقی هیوادونوکی چهدژوندانهپهبیلو ساحوکی ئی ډول ډول بریالیتوبونه پهنصیب شوی دیدکال پهپایکی دخپلوداخلیاوخارجی جریاناتو دمعرفی دپاره بیلی بیلی رسالی او کالنی دسیاسی ، اقتصادی،تخنیکیهنری او داسی نورو په نومونو خپریږی، اداری او مسلکی تشکیلات ئی دیوانسایکلوپیډی پهشکل تهیه او تنظیم شوی وی .

اوس چه داطلاعاتو او کلتور دوزارت پهصوابدید دافغانستان کـالنی په مسلکی او

## دافغانستان کالنی

اداری چارو کی دتوجه وړ بدلون راغلی دی‌اود یومنظم او مجهز پروگرام لاندی ښېل کار پرمخ بیائی‌اود افغانستان‌کالنی دپارتمنت‌په‌آینده کی دمجلاتو دریاست دیو یونټ‌په حیث په‌کار شروع کـوی هیله ده دهغـوسهولتونو او مرستو څخه چه دمجلاتودریاست په‌برخه‌دی دافغانستان‌کالنی هم‌برخورداره‌وی‌اودداسی کالنیو په خپرولو بریالی شی څرنګه چه بنائیږی .

په‌پای‌کی دمجلاتو درئیس اوکالنی دنوی‌مسؤل مدیر اود کالنی ددفتر دټولوهمکارانو څخه چه‌په ډیر تنګ وخت او طباعتی‌معذرتونوپه اثناکـی ئی ددی کـالنی دخپرولو په‌لارکی هیڅ‌ډول مرسته او توجه نـه‌ده سپمولی‌دزړه‌دکومی مننه او تشکر کیږی ددوی په ابتکار اوپشت‌کار دکالنیو دراتلونکو چارو دپرمختیااوبریالیتوبونو هیلمند یو .



فرمان احضار لویه جرگه که از حضور اعلیحضرت شهید سعید

محمد نادر شاه غازی بتاریخ ۱۸ سرطان ۱۳۰۹

# فرمان حضور !

برادر عزیز الوجود محترم محمد هاشم خان صدر اعظم !

چون وطن عزیز ما پس از طی کردن روزهای دهشت انقلاب در سایهٔ رحمت و فعالیت اولیای امور مجدداً مجال سکون و آرامش یافته است و بفضل ایزد منان کارها درست و منتظم شده است خواستیم خط حرکت آیندهٔ مملکت را (چنانکه در قبلاً خط مشی خود ذکر داده ایم) بموافقت و میل جمهور نمایندگان ملت تعیین کرده و تحت مقررات تشکیلی نافعی قرار دهیم از آن رو تشکیل یک لویه جرگه را در مرکز از نمایندگان ملت حتمی و لازمی پنداشته و شما را امر می فرمائیم که این تصمیم ما را به همه ملت اعلان و اعلام کرده و تجاویز فوری برای احضار وکلای جرگه اتخاذ و متعاقباً سفر خرچ و وسائل ورود آنها را بمرکز تدارک دیده و مواد لازمه و فرامین منظوری آن و صور اعلانات را بجهت ملاحظه ما حاضر کنند. تا خدا بخواهد این تصمیم ما در نزدیکترین موقع از قوه به فعل آمده و وکلای جرگه بتاریخ دهم ماه سنبله بمرکز اثبات وجود نمایند. لازم است در این موضوع بکمال توجه را مبذول فرمائید.

توشیح و مهر اعلیحضرت محمد نادر شاه غازی



بمناسبت افتتاح لویه جرگه

سال ۱۵،۱۳۲۰ عقرب

# ارشادات اعلیحضرت معظم همایونی

عزیزان من !

با مسرت زیاد به همه شما خوش آمدید می گویم و خرسندم که شما نمایندگان محترم را برای فکر بهبود وطن درین محفل جمع می بینیم .

عزیزان من !

این اجتماع شما در مرکز دو وجه دارد یکی از اینکه شخصاً خودم آرزو داشتم تا نمایندگان ملت عزیزم را که ممثل احساسات و تمنیات توده ملت اند ملاقات نمایم و دیگر اینکه وضعیتیکه درین دو سال و چند ماه در اثر این جنگ عالمگیر بجهان رو داده انعقاد همچو اجتماعی را ایجاب میکرد شما همه میدانید که در زمان کمی در اثر این حرب تغیرات مهمی نه تنها در وضعیت جغرافیائی دنیا بلکه در بر شعبات حیاتی اقوام رو داده محارب و غیر محارب را بنوعی از انواع متأثر ساخته است باخصوص از چندی باینطرف ساحه جنگ از غرب بشرق تحول کرده و ممالکیکه خود شانرا چندی قبل از خطرات مستقیم حرب نسبتاً مصئون میدانستند مورد صدمات ناگواری گردیده اند بناءً علیه لازم افتاد افغانستان هم که درین حصه شرق موقعیت مهمی را دارا بوده وهست درین وقت نازک در سیاست خارجه خود که بر اساس صلح و بیطرفی مطلق دوام داشته و دارد در مقابل واقعات موجوده غور و دقت لازمه نماید و ملت و حکومت که هیچگاه از هم جدائی نداشته در مسایل جزوی و کلی مملکت دائماً متحد و همدست اند و تبادله فکر و اتخاذ تصمیم نمایند بنابران است که امروز بنام خداوند قادر توانا این لویه جرگه را افتتاح نمایم و از بارگاه ایزدی بزبان عجز استرحام میکنم که تصمیمات این لویه جرگه را باعث خیر و سعادت این خاک پاک گردانیده ملک و ملت را در اثر همکاری و اتفاق به افتخاراتیکه آرزوی قلبی ماست نائل و از پیش آمدهای ناگوار زمان مصئون بدارد

توشیح و مهر اعلیحضرت محمد ظاهر شاه

# دافغانستان د باچا ښکلل

مونږ المتوکل علی الله محمد ظاهر شاه دافغانستان باچا
دافغانستان د نوي اساسي قانون مسوده چه
د هغې لويې جرگې له خوا تصويب شوې کومه
چه د ۱۳۴۳ هـ ش کال د سنبلې د مياشتې د
اتلسمې ورځې څخه د سنبلې تر اته ويشتمې پورې
د کابل په ښار کې غونډه شوې وه د لوی خدای
په نامه ښکلوو او سر له نن ورځې څخه يې
د دولت په ټولو سيمو کې د افغانستان
داساسي قانون په حيث نافذه اعلاموو.

سر له نن ورځې دافغانستان هغه
اساسي قانون چه د ۱۳۰۹ هـ ش کال د لويې جرگې
له خوا تصويب شوی او تر ننه پورې په هيواد
کې نافذ و د هغه د ټولو ضمائمو سره لغو
شوی اعلاموو.

# توشیح پادشاه افغانستان

ما المتوکل علی الله محمد ظاهر شاه پادشاه افغانستان
مسوده قانون اساسی جدید افغانستان را
که از طرف لویه جرگه ایکه از هژدهم تا بیست و
هشتم ماه سنبله سال ۱۳۴۳ هـ ش در
شهر کابل انعقاد یافت تصویب گردیده
بنام خداوند بزرگ توشیح میکنیم و سر از امروز
آنرا بحیث قانون اساسی افغانستان در تمام
نقاط دولت نافذ اعلام می نمائیم.

سر از امروز قانون اساسی را که از طرف
لویه جرگه سال ۱۳۰۹ هـ ش تصویب گردید و تاکنون
در کشور نافذ بود با تمام ضمائم آن ملغی اعلام میداریم.

محمد ظاهر شاه

دافغانستان پادشاه

دګلخانې ماڼۍ
۹ ميزان ۱۳۴۳

قصر گلخانه
۹ میزان ۱۳۴۳



بمناسبت تعیین سرنوشت آزادی مردم پښتونستان فرمان احضار لویه جرگه

۱۳ عقرب ۱۳۳۴

# فرمان حضور

کشور افغانستان مطابق عنعنات باستانی خود امور مهمه و خطیر را همواره بمشوره و استصواب رای عامهٔ ملت انجام داده است انعقاد لویه جرگه که مظهر افکار عمومیه ملت شمرده میشود در مواقعیکه مملکت به مسایل نازک و حیاتی مواجه می باشد یکی از سنن باستانی این ملت باشهامت است.

سنن ملی ما همه بر اساس شریعت غرای محمدی (ص) استوار است بموجب آیه کریمه «وامرهم شوری بینهم» این حکومت اسلامی اتفاق مشورت را اساس خط مشی خود قرار داده است. پدر مغفور ما اعلیحضرت سعید شهید که حفظ عنعنات دینی و ملی کشور، اساس خط مشی شان بود مسایل مهمهٔ مملکتی را بمشورهٔ وکلای لویه جرگه تعیین و تعمیل میفرمودند.

این خادم وطن با قبول عهد سلطنت به پیروی از خط مشی پدر مغفور خود علاوه براینکه اجرای امور را در حال عادی از راه مشوره و استحصال رای نمایندگان ملت در شورای ملی افغانستان مد نظر داشته ایم امور مهمهٔ مملکتی را در مواقع فوق العاده بمعرض رای عامهٔ ملت گذاشته افکار و نظریات آنها را اساس خط مشی حکومت قرار داده ایم چون درین موقع نظر بوخامت موضوع تعیین سرنوشت آزادی مردم پښتونستان حکومت در برابر یک وظیفهٔ بزرگ ملی خود را محتاج به مشوره و نظریهٔ عامهٔ ملت می بینند بنابرآن بر حسب معروضهٔ حکومت انعقاد لویه جرگه را بتاریخ (۲۰ عقرب ۱۳۳۴) در شهر کابل پایتخت با اراده و منظور نموده ایم و ازین تصمیم خود به عموم ملت ابلاغ میداریم تا وکلای فوق العاده خود را برای لویه جرگه انتخاب و الی تاریخ مذکور به مرکز اعزام دارند. به حکومت طبق فرمان جداگانه امر داده شده است که ترتیبات مجلس لویه جرگه را برای تاریخ مذکور بگیرند.

از بارگاه ایزدی برای وکلای محترم ملت طلب توفیق مینمایم تا براساس آیه وافی الهدایه «وشاورهم فی الامر فاذا عزمت فتوکل علی الله» در امور مربوط مشاوره نموده مساعی و نظریات آنها بخیر و سعادت کشور منجر گردد.

بعون الله الملک المنان

توشیح و مهر سلطنتی اعلیحضرت محمد ظاهر شاه

# د همایونی معظم اعلیحضرت د ارشاداتو متن

## د نوی کال په مناسبت

بسم الله الرحمن الر حیم

### گرانو وطنوالو !

نوی کال دپسرلی په راتگ او دژمی په تیریدو چه پوره اوربنتونه ورسره وی لـه یوی خوا مونږ ته یو آبادکال زیری کوی اوله بلی خوا دپاك خدای (ج) لطف اومهربانی مونږ ته یوه درنده وظیفه راسپار ی چه ددی اقلیمی برابرو شرطونو څخه دکرنی اونیالگیو ایښودلو په برخه کښی زیاته گټه واخلو .

زمونږ خلك دتیرودووکلونو دو چکا لـی دبدو نتیجو په لیدلو سره لـه پخوانه زیات دی خبری ته ملتفت شول چه دکرنی په برخه کی بریالیتوب زمونږ په ملی ژوندانه کـی ډیر اهمیت لری اومونږ هریو پخپل خپـل وارد هیواد په سمسو رتیا اودکرنی اومالداری دچارو په پرمختگ کښی مکلفیتونه لرو .

دځنگلونو جوړول اودمیوه لرونکـو او بی میوی نیالگیو ایښودل سر بېـره پـه دی چه دهیواد په اقلیم کښی څرگنده اغیزه لری زمونږ دخلکو په اقتصادی او اجتماعی ژوند کښی هم لوی نقش لوبوی دمیوو اوځنگلونو محصولاتو ته دټولنی دورځ په ورځ زیاتیدونکی اړتیا سره داخبره تـړلی ده چه مـو نـږ په ډیره پراخه پیمانه دمصنوعی اوطبیعی ـ ځنگلو نو دپرا ختیا روزنی اوسا تنی دپاره ملاوتړونو ښایی چه هر وطنوال په دی لاره کښی زیار وباسی اوپه دی توگه دا ولس اودولتی پروگرامونو دپوره کولـو پـه لاره کښی پوره مرسته وکړی .

دکرنی اوزراعت په برخه کښی هم باید دتیرو ازمیښتو نوله مخی یوازی دانه چـه خلك د دولت دانکشا فی پرو گرا مو نو سره مرسته وکړی بلکه هیله لر وچـه زمونږ ټول خلك دخپل ملـی مسئوولیت لـه مخی له ګډو او انفرادی زیارو څخه ځانونه ژغوری ترڅو چه دخدای «ج» په مهربا نـی اوستاسی دکوښښس اتفاق اوزیار مرستـه په راتلونکی کال کښی دخوراکی موادودپیدا ینبت د هیواد دسمسورتیا او دزراعتی پیـدا وارو د زیاتولو په لاره کښی په زړه پوری گړندی گامونه واخیستل شی او په دی ډول دښه ژوند پـه برابر ولو کښی دراتلو نکو نسلو نو دپاره خپله وظیفه تر سره کړو او پخپل ځانـد بسیا کیدو پړ اوته ځانونه ورسوو .

# دوطن دخپلواکی دبیرته ا خستلو د څلور پنځوسمی

# کالیزی په مناسبت

بسم‌الله الرحمن الرحیم :

## گرانو وطنوالو !

دلوی خدای په مرسته یوځل بیا هغه ورځ نمانځو چه زمونږ د ملی شخصیت په‌راخرگندولو او دنوی افغانستان په‌بنسټ ایښودلو کښی ئی مؤثر نقش‌لاره هغه حرکت چه‌په ټول‌هیواد کښی‌یی دملی نوامیسو ددفاع ضرورت راولاړ کړ ز مونږ دملت په‌ضمیر کښی ئی‌ډیر سپیڅلی‌نغښتل شوی خاصیتونه رابر سیره کړل استعمار په هغه ټول قوتچه په‌اتلسمه اونولسمه پیړی کښی لاره ونه کړی شول چه‌زمونږ په اولس باندی تسلط پیداکړی دهغو کلونو په موده کښی چه‌په دی خاوره کی داستعمار په خلاف مبارزه ګړی بند په بندغځو له له بله هره وخته زیات په‌دی پوهشو چه‌د کورنی جبهی تنظیم اودهغی دمادی او معنوی اجزاوټینګ تړون دبریالیتوب په موندلوکی قاطع تاثیر لری .

دکوم اولس دفکر اواحساس په محیط اوچاپیر یال باندی چه‌دیووالي ریښا خوره شوی ده هغه کولی شی چه خپلی هستی‌ته هرمتوجه خطر دلوئید ونه مخکښی له‌منځه یوسی .

دنوی افغانستان‌ودانول‌زمونږ دغوره‌معنوی میراث په‌ساتنه دانسانی کرامت د ساتونکی اودزمانی له غوښتنو او حقایقو سره دیوه برابر ژوند دخوندی کولو په‌عزم شروع شو دخپلواکی دڅارنی اودفاع امانت کټمټ‌دهغی دبیرته اخستلو په شان داولس د فطری پیاوړ تیا دجذبی روزنی اوډژوند د مناسبو حالاتو برابرو لوته اساسی اړتیا لری اوله همدغه ځایه دیوداسی اقتصادی علمی‌اومترقی نظام دودانی‌خواته‌دپاملرنی ضرورت راپورته کیږی .چه‌په نتیجه اوثمره کښی یی زمونږ اولس دواقعی دښمنانو یعنی‌فقر ،بیسوادی‌او ناروغی څخه خلاص شی .

ځمکی ته‌دپا ملرنی اوزمونږ په‌اقتصادکښی دهغی دتاثیر اهمیت به‌شاید هیڅکله هم دسترنی کال په‌شان زمونږ ټولو په سترګو کښی نووځلید لی‌اودکروندی چارو اود هغو کسانو حال‌ته‌توجه چه‌مالداری په‌چارو کښی چوزمونږ داولس دژوند یوه مهمه برخه ده‌د حکومت او وطنوالو سملاسی اوډیر اساسی وظیفه‌ده په‌دووتیروپرله پسی وچکالیو کړد زیل شویو درد په‌دغه ټوله ستوغه مو ده کښی‌له مونږ سره‌ملګری وواو یوځل‌بیاله‌دغو ټولودر دیدلو سره دخپلی خواخوږی په څرګندولو هیله لرو چه پرله‌پسی د داسی

تدبیرونو تاداو کیښودل شی چه نتیجه ئی ددغسی آسمانی آفتونو له‌عواقبو سره‌دمخامخ کیدو دپاره دمؤثر لرل وی په‌دی فرصت کښی‌دهغو ټولو کوششونو قدرکوو چه‌دهیواد په مختلفو سیمو باندی ددی طبیعی بحران دتاثیراتو دکمولو دپاره شوی او کیږی‌دغه راز دافغانستان دملت په‌نامه دهغو ټولو دوستو هیوادونو او بین‌المللی مؤسسومننه کووچه زمونږ له‌اولس سره‌ئی ددغو دوو وچکالیو دناوړو آثارو دلری کولو په لار کښی مرسته کړی ده.

دتجربو اوننی زمانی دپوهی په بنیاد باندی دکرهنی دپراختیا سره یو ځای باید او لس او حکومت دصنعت دپراختیا اوترقی لوری ته پاملرنه وکړی داقتصادی بنیاد دپیاوړ تیادپاره دهیواد دکانونو دپلټنی او استفادی په‌عرض دمادی اوبشری وسایلو برابرول یو ډیر ضروری کاردی .

ددی خاوری له‌طبیعی شتمنیو څخه ډیره چټکه او خورا زیاته فایده اخستنه به یقیناً دهیواد دترقی دوظیفی دپوره کولو رفتار دومره ګړندی کاندی چه‌زمونږ ټولنه ورته واقعی اړتیا لری .

دمملکت داقتصاد اودغه راز داجتماع او سعادت په لاره کښی دهر ډول کو ښښ

بریالیتوب ددولت دقانون جوړونکی رکن او اجرائیه قوی ترمنځ دفکر دنژدیوالی او عملی ملگر تیا څخه پرته پرلاس نه شی راتلای او هیله لرو چه دغه دواړه قوی او قضائیه قوه د افغانستان داساسی قانون په بنیاد دملی ژوند دتنظیم او اداری او داولس دخدمت په لار کښی همیشه دتفاهم او ملگر تیا له روحیی څخه مستفید اوسی .

دملی وحدت دشیرازی ساتل نه یواځی ددی نسل په اوږو باندی دافغانستان دمملکت د نورو ټولو نسلونو غوندی یو پخوانی امانت دی بلکه پرله پسی ساتنه اوروزنه دهیواد دودانی اود خپلوا کی له ناموس او دخاوری دتمامیت څخه ددفاع په لاره کښی اساسی او پوخ عنصر گڼل کیږی ددی خاوری هیڅ یووگړی که په نظری کی وی او که عمل کی ځانته داحق نه شی ورکولی چه زمونږ د ملی ژوند دپاره ددی حقیقت دحیاتی اهمیت څخه لری پاتی شی او که داسی نه وی نودوی به د دولت داساسی قانون د روح او متن اودنورو قوانینو داحکامو اودغه رازپه اساسی ارزښتونو کښی دنغښتو معنی اودهیواداواولس دلرغونو عنعناتو دپوهی څخه لری پریوتلی وی .ددی هیلو اوزمونږ په ملی ژوند کښی دنغښتو آرزوگانو پوره کیدل .دعلم او ثقافت دبرخه والو ځوانانو په وجودپوری اساسی ارتباط لری باید دځوانانو په مشکلاتو باندی دسمی او ژوری پوهی په اساس ددوی دشو نـی او روزنی او په ملی ژوند کښی دسالمی اومثبتی برخی اخستلو دپاره ددوی دتیارولو په برخه کښی خاصه پاملرنه وشی .

دی مقصدته درسیدلو په لارکی بایددروزنو الو په وړاندی دافغانی روزنی واقعی اورښتینی ماهیت څرگندوی .

دملی ثقافت اصیل ارزښتونه او هغــه تحولات چه زمانه یی پرله پسی غواړی ددغه ماهیت دوه نه بیلیدونکی برخی دی .

دځوانانو په تیره بیا دتحصیل دخاوندانو له انرژی څخه استفاده هم ددوی دروح او بدن له سلامتی سره مرسته کوی اوهم دمملکت دودانی کار په هغه چټکتیا چه مونږ یی غواړو او غواړی یی پر مځ بیایی دنړی مسایلو تـه دافغانستان موجوده نظر په کافی اندازه د هغو تجر بو محصول دی چه مونږ داستعمـار خلاف دخپل اولس له غورځو پرځو څخـه حاصل کړی دی . دبیطرفی مثبت اوفعال تگ لاری په سیاسی او نظامی ډلو ټپلو پوری د ځان نه غوټه کول په بین المللی مسایلو کښی آزاد قضاوت او مسا وات په اساسی ددولتونو ترمنځ ددوستی او همکاری داصل احتـرام زمونږ دهیواد دخارجی سیاست ثابتی پاتی دی دخپل سرنوشت په ټاکلو کښی د خلکو اولسونو دارادی قاطع اهمیت داستعمارد ټولو نښو اوشکلونو ختمول ،دملگروملتو دمنشور ملاتړ اودهغه ارزښتونوته په بین المللی سترگه کتل چه دغه اهداف او نور بشر غوښتو نکی مقصدونه پکښی پراته دی زمونږ داولس له روحیاتو سره طبیعی سمون لری، مونږ دگټی کولو دپاره په ملتونو او اولسونو بانـدی دزور په استعمال عقیده نه لرو اودروغی جوړی په لار دبین المللی کشالو داورولو ملاتړ کوو .

افغانستان به دمنځنی ختیځ په کړ کیــچ کښی داسرائیلو په خلاف دعرب او لس د مبارزی سره خپله همیشنی مرستــه جـاری وساتی . مونږ عقیده لروچه په دغه سیمه کښی سوله هغه وخت بیرته راستنیدی شی چه دمصر ، سوریی اواردن دنیول شوی ځمکی اشغال داسرائیلو دمتجاوزو قواوله خواپای ته ورسیږی اوزمونږ وروڼو فلسطینی عربو تـه خپل حقوق بیرته ورکړل شی .

امید کووچه دپاکستان اوهندپه قاره کښی به هم بالاخره دوامداری آرامی له امکاناتو څخه چه نښی نښانی یی همدا اوس دشملی دخبرو اترو وروسته راڅرگندی شوی دی دسیمی دهیوادونو اوددغو هیوادونو تر منځ دگټورو اقتصادی همکار یو اودبین المللــی سولی په گټه کارواخستل شی .

افغانستان دصلحدوستی د خپل پخوانی سیاست په اساس اودخپلو ملی بنیگړ وپه پاملرنه ددغی هیلی هرکلی کړی اوکوی یی مونږ آرزو لرو چه دویتنام او دټول هندو چین

اوږد جنګ هم پای ته ورسیږی افغانستان د سرنوشت ټاکلو په برخه کښې ددغې سیمی دخلکو ارادی داحترام اصل بې له خار جی مداخلې اوډزنیو دموافقاتو په اساس تا ئید کړی او تائیدوی یې دهیواد دخپلواکۍ دنمانځلو په وخت کې زمونږ خاطر په خاص طور د پښتونستان اولس ته متوجه دی ،افغانستان ددوو لویو جرګو دفیصلو په اساس د خپلو ورونو دپاره دسرنوشت دټاکلو دحق دملاتړ دتاریخي وظیفې پور ه کول جاري ساتلی دی اوددغه ملی هدف دحاصلیدو تروخته پوری به دروغې جوړې په ټولو لارو کې خپل کوشش پرله پسې جاري وساتي .

د هیـواد خپلـواکـې ددې خاورې د زړورو زامنو دلوړ همت اوسربښندنـې ثمره ده مونږ داخپله وظیفه ګڼو چه ددوی دتاریخي پیاوړتیا په نمانځنـه دخپلواکـې دجګـړې دټو لـو شهیدانو اودهغوی دستر قاید اعلیحضـرت محمد نادرشاه شهیدارواحوته ددعا تحفـــه وړاندې کړو .

خپلو ټولو ګرانووطنوالو ته ددې بختورورځو مبارکی وایو او دلوی اومهربا نه خدای په نامه دافغا نستان دخپلواکی دځلور پنځوسم کال دشروع کیدو مراسم پرانیځو .

---

## پاچا

په افغا نستان کې پاچا دملی حاکمیت، ښکار ندوی دی

«داساسی قانون شپږمه ماده»

پاچا داسلام د سپیڅلی دین، داساسو نو ، ساتنوال، دافغانستان دخپلواکی، او د سیمی د تما میت، ساتونکی، داساسی قانون،ساتندوی او دملی یو والي، مرکز دی.

«داساسی قانون او مه ماده»

# دکوچنی اختر پهمناسبت

**بسم‌ا لله الرحـمـن الـر حيم**

**خوښس يم‌چه دکوچني نيکمرغه اختر پـه مناسبت خپلی دزړه مبارکی خپلو ګرا نـو رعاياو اودنړی ټولو مسلمانانو تهٔ‌ځرګندوم .**

**دلوی خدای نه ديرشکر کوم چه دخپلـو بندګانو تهٔ‌يی توفيق ورپه‌برخه‌کړ چه دروژی په‌مبارکه مياشت کی يی په‌بندګی اوتواضـع سره دينی فرايض اداکړل او دخپلو طاعتونو او عبادتونو په‌مقابل کـی‌يی دپاك خـد ای دبښنی اورحمت غوښتنه وکړه ددغو عبادتونو ژور تأثيرونه دټولو مسلمانانو په اروا حـو باندی ځر ګندوی په‌دغه نيك فرصت کی‌د اسلام امت دخپلودينی فرايضو داجرا له‌لاری دافرادو اوټولنو ترمنځ دزړونوپه نژدی والی او د دوستی او ورورولـی دعـلا يقـو پـه ټينګښت سره دورورولی اويووالی داحساس دټينګوالی اودبيوزلو همنوعانو سره‌داجتماعی مرستی او ښی همکاری دروحی دزيا توا لی د روزنی په‌غرض په ټينګك عزم اوقوی‌ايمان دريږی .**

**هيله‌لرم چه‌ددغو نيکمرغو ورځونمانځلو له امله زمونږ دملت ټول افراد دقرآنی احکامو اونبوی ارشاداتو په پيروی سره دمرستواو همکاريو دښسټ دتقويی اوديـوبل ترمنځ د وحدت تامين اودښه تفاهم دپيداکولو په‌لاره کی‌دنورو هروخت نهٔ‌زيات زيار وباسی .**

**په‌داسی حال‌کی چه‌خپلو ګرانو وطنوالواو خپلو ټولو مسلمانانو ورونو ته‌ددغوبختورو ورځو مبارکی وايم دپاك خدای له‌درباره نـه ددوی دنيکمرغی او بريالیتوب دعاکوم .**

# دښوونکي دورځې په‌مناسبت

بسم‌الله الرحمن الرحیم :

د ښوونکي بالارزښته شخصیت دانسان په تاریخ کې‌ډیر لوړ مقام‌لري .په‌حقیقت کې‌د تاریخ وده او دوام دښوو نکي دنقش او کوشش مرهون دی، موږدخپلو لیکونو او د نورو بشري ټولنو ثقافت‌اودزماني دبدلیدونکو شرایطو سره ژوندانه رسم ورواج د ښوونکي دپوهني اواندیښني اودهغه‌دمسئول او ویښ فکر څخه زده کوو .

دښوونکي دمقام تجلیل په حقیقت کې‌د پوهي دمقام تجلیل دی هغه مقام چه‌دنړی په‌نورو مخلو قاتو دانسان ښه والي د هغه نتیجه بلل شوی ده په‌اخلاقو اونیکو فضایلو کې‌دتسلسل ساتنه اودعلم اوادب‌په‌نړی‌کې‌د نورو شیانو کشف دښوونکو ددوامدار و کوښښو نوثمره ده‌چه‌دبشر نسل د معنوی بقا وظیفه یی‌په غاړه ده.

داسلام سپیڅلی دین اودهغه په اساس زمونږ لرغونی اومعاصر ثقافت په انسا ني تاریخ کې‌ددغو حقایقو په‌درك استوار اود استاد احترام یی‌زمونږ په ملی ژوند کې‌د اصیلو عناصرو یو جزء بللی دی .

زمونږ هیله له‌ټولومحصلینو اوزده کوونکو څخه‌داده چه‌په‌زړه‌اودماغ‌کی هروخت‌داستادانو اوښوونکو احترام وساتي همدا رنګه‌هیله‌لرو چه‌دولت دمعلماتو معلمانو اواستاذانو داحوال دسویي ښه‌والی ته‌توجه وکړی اودهغودمعنوی سویي اوژوندانه دشرایطو په ښه کولوسره دافغانستان دننني اوراتلونکی نسلو نو په روزنه کی‌مؤثر ەبرخه واخلی .

دهیواد ټولوښوونکو ته‌ددی نیکمرغی‌ورځی مبارکی وایو اودافغان ځوانانو اودکوچنیانود اخلاقی فضایلو دروزنی اوهمدا رنګه دهیواد دودانولو په وظیفه کی‌دهغو دښه چمتو والی له‌پاره دټولوښو ونکو دز یاتروکوښښونوتمنا کوو .

# دنیکمرغه لوی اختر پهمناسبت

بسما لله الرحــمـن الــر حیم

## گرانو وطــنوالو !

تاسو ټولوته دزړه پهمینه دبختور لوی‌اختر مبارکی وایم خوشحاله یم چه دافغا نستان اولس څینی خلك چه دینداری ددغه اولس دتاریخی خصوصیت یوه برخه دهدپیغمبرانو دسردار علیه‌افضل‌التحیات پهپله باندی‌برابر دلوی خدای دفرضونو پوره‌کولو پهنیت‌ددنیا دمسلمانانو دیوی ډیری لویی ټولنی ســر ه څنګ پهڅنګ دکعبی مکرمی په زیارت‌باندی مشرفیږی .

دحج مبارك مناسك نه‌یوائحی داچه دپاك خدای رضا اوخوښی تهدځان سپارلو‌پهعقیده باندی ولاړ دی‌بلکه‌پهدی‌کښی دلوی خدای(ج) درضاء اودخدمت پهلار کی دقربانی پهباب د فداکاری او سرشندنی‌غوره اصل پروت دی .

داوخت‌چه‌زمونږ هیواد وال دخپلو نــورو مسلمانانو ورونو سره دیو هدف دپاره دحج دخدایی فرایضو دپوره کولوپه عبادت بوخت دي اود دنیا مسلمانان داسلام دغــوره لارــ ښودنو پهپیروی دابختوری ورځی نمانځــی دافغانستان دټول اولس ترمنځ دملی وحدت دپیوندونو دنوری پیاوړتیا اویوبل سره‌دمینی اومعنوی روابطو دلاپسی ټینګولو دپــاره د افغانانو دمجاهدت ضرور ت دیوی غــــوره فریضی پهخیر خپله‌تجلی زیاتوی . زه امید لرم چه‌دخپلو مسلمانانو ورونو سره زمونږ دهیواد والو داخوورځنی ناسته ولاړه اودلوی اخترپدی بختور وورځوکی دخدای پهفرمان ددنیادمختلفو څنډو داوسیدونکو مسلما نانــو دنمایندګانــو لهخوا دلبیك آواز بــه ددنیا د مسلما نانو ترمنځ یوبل تهدلاس ورکولواو یوله‌بل سره پهښه ډول دځان پو هولــو پــه برخه کی پهزړه پوری تاثیرولری .

دلوی خدای جل‌وعلی شا نه‌له‌دربارههیلــه کوم چه‌زما ټول ګران وطنوال ددی‌بــختور و ورځوپه برکتونو اوفیوضو ونمانځی او خپل بی‌انتها خدایی رحمت پهدوی ټولو اوددوی دټولی‌نړی پهمسلمانو ورونو وورِوی .

# د افغان ملت د معنوي مورعلیاحضرت معظمې ملکې پیغامونه

## د کوچنیانو دورځې په مناسبت

بسم الله الرحمن الرحیم

په ننني نړۍ کښې کوچنیاو د هغه د عقل او بدن روغتیا ته د پاملرنې مسئله ، د ټولو اجتماعي او فرهنګي مهمو مسئلو په سر کښې واقع ده .

دغه پېرۍ چه ژوند پکښې کوو او هغه پېرۍ چه سبا به ژوند پکښې وکړو د بشر په تاریخ کښې له بل هر وخت څخه زیات پوهنې ته اړتیا لري اوس نور حتی دانساني ژوندانه ډېر وعادي ساحو ته له اختصاصي معلوماتو څخه پرته تنظیم او پراختیا نه شوور کولی. په دغه راز شرایطو کښې دکوچني روزنه او له بې سابقه امکاناتو څخه په دغه ډ کـــــې پېړۍ کښې د ژ ونـد کو لـــو پـــه آزموینه کښې دبریالي کېدلو د پاره د هغه چمتو کول زمونږ د هېواد او دبین المللي ټولنې د پاره اساسي اهمیت لري .

دکوچنیانو دچارو له ټولو واکمنو اوله ټولو هغو ادارو او مؤسسو څخه چه دکو چنیانو د ښووني او روزنې ددندې په اجرا کولو کښې برخه لري زمونږ هیله داده چه له بل هروخت څخه زیات دکوچني جسمي رو غتیا د هغـــه د معلوماتو دافق انکشاف او پراختیا اوله نړۍ سره د هغه دعلاقې افق ته پاملرنه وکړي .

دهیواد د پر مختګ هدف چه تامینیږي د ټو لو وطنوالو او د دولت ارکانو وجیبه ده د سالمو او د اسلام د سپیڅلي دین له تعالیمو او دخپلې پېړۍ د نښو نښانو او ملي ارزښتونو خبر ځوانانو ته زمونږ اړتیا لامحسوسوی .

له دی امله په هره پیمانه چه دخپلو کوچنیانو حالت ته پاملرنه وکړو په هماغه پیمانـــه مو دخپل هیواد دوداني او پر مختګ په کار کښې اغیزنا که برخه اخستې ده .

په دغه ساحه کښې دکوچنیانو دروغتیا او روزنې پوری دمربوطو جهاني مؤسسو زیار دهغه ستر اهمیت له کبله چه دد وی خدمت یې ننني او سباني انساني ټولنې ته لري او افغان کوچني ته په پاملرنه کښې ددغه زیار دنقش په خاطر د هرډول تقدیر او ستاینې وړ دی .

دغه نیکمرغه ورځ دخپل هیواد ټولو کوچنیانو او دنړۍ کوچنیانو ته مبارکي وایو د ټولو هغو هڅوچه دکوچني دخدمت په لاره کښې دافغاني مربیا نو او کار کوونکو له خوا کیږی صمیمانه قدر داني کوو او په دغه لاره کښې له لوی خدای «ج» څخه ددوی دزیات بری هیله کوو.

# دمور دورځی په‌مناسبت

بسما لله الرحـمـن الـر حیم

مور له نن څخه دتیرو ټولو سره‌زمونـږ دنښلولو کړی‌ده .

دهغی ارښتناك مقام لمانځنه په حقیقت کی‌دژوندانه‌دنعمت‌او دروزنی‌دنعمت نمانځه‌ده .

انسانی فرهنگ ښایی داجتماعی ژوندانه دعناصرو له‌بل هر واحـد څخه زیات دمـور مرهون اوسی .

دمور غیږه دچه مونږ پکښی دفر هنگـی ارښتو نوښتځ زده کوواو دهغه په واسطه دانسانی تاریخ تسلسل ساتو .

دمور ستړگی لومړنی هینداره ده چه په عمق کښې یی‌مونږ دمینی له مفهوم دپاکـی اندیښنی له‌مفهوم دکورنی له مفهوم دهیواد دزیږیدلو دخای متعلق له‌مفهوم اوله سوونو نورو عالی مفاهیمو سره چه دبشری ژواندانه بنسټ په‌ښواخلاقو ټینگوی خپله پیژندگلوی شروع کوو .

مور زمونږ لومړنی ښوونکی دی: داسـی ښوونکی چه‌دفکر احساس اودمتو زوریی ټول زمونږ په‌لاره کی اودهغی ټولنی دگټورغړی په حیث چه‌مونږ پکښی ژوند کوو زمونـږد روزلوپه لاره کښی وقف شویدی .

دخدای جل‌جلاله غوره شر یعت او زمونږ ملی‌قوانین اوسنن ددغو ټولو فطری‌اوفرهنگی ارښتو نوله مخه دمورمقام‌ته ستر‌خصوصیت بخښلی اوددغه لرغونی‌اومسلمان هیوادثقافت دمور لوړ مقام دخلکو په‌ادب کښی داحترام په‌شپولو نواحاطه کړیدی .

مورته‌داحترام له‌ټولو مظاهرو څخه غوره اوپورته پخپله‌دهغی‌داساسی روزنی‌ته‌پاملرنه کول‌دي .

مونږ که‌دمیندو دپوهی دافق په پراختیا او ددوی صحی اواجتماعی ژوندانه په‌ښیگڼه کښی هڅه وکړوپه‌هماغه پیمانه به‌دخپل‌اولاد دعمل اوجسم سلامتیا اودروزنی پاکی‌په‌ښه توگه تضمین کړی .

په‌دغی نیکمرغه ورځ دخپلی مینی پیغـام دافغان ټولو میندوته استوم‌اودښځښونکی‌خدای ستردر بار څخه دوی ته ددوی‌داهمیت لرونکی نقش په غوره سرته رسولو اوددغی خاوری دټول اولاد دپاره دمور دنقش اومقام پـــه لمانځلو کښی دزیات بری‌هیله کوم.

# د افغانی سری میاشتی دټولنی دعالی رییس والاحضرت شهزاده احمدشاه پیغام

## دنوی کال پهمناسبت

بسم الله الرحمن الرحیم

### گرانو وطنوالو !

تاسو ټولو اودنړی نورو مسلمانانو ته دنوی کال مبارکی وایم اودملت پالو نکی پادشاه اودافغانی سری میاشتی دټولنیدحامی معظم ټولواك همایونی اعلیحضرت ترقیادت لاندی دگران افغانستان خیر اوفلاح آرامی اورفاه ترقی اولوړ والی دلوی خدای (ج) له درباره غواړم .

افغانی ټولنه دبشریت دلویی کورنیغړی اودا فغانی سری میاشتی ټولنه دنړی دخیریه مؤسسو دبینالمللی اتحادیی عضووده .

همغه شان چهافغانی ټولنی دبشریت لویی کورنی دیوه صالح غړیپهحیث پهپوره خیر ـ خواهی اوخیر اندیشی دهیوادلوړ مصالح دمملکت دسترو کسانو پهلار ښوونه او قیادت اودټول ملتپهاراده دجهانی سولی په رڼا کښی لټولی دی .

دافغانی سری میاشتی ټولنه هم دیوی ملی خیریه مؤسسی اودنړی دخیریه مؤسسود اتحادیی دیوی غړی پهحیث د افغان نجیب ملت ددینی معتقداتو ملی نوامیسو او دفاع پاللو اوبشر دوستی داحساساتو واقعی ځرگندونکی دهددی اصل له مخییی همیشه دجینوا دتړون اصو لو او پرنسیپو نو تهچه دلویو انسانی ارزښتونو درلودونکیدیاحترام کړیاو کوییی .

دافغانی سریمیاشتی ټولنی دخپلوخیر ـ اندیشو وطنوالو پهمرسته اودلیك او نورو مما ثلو ملی خیریه ټولنو پهملاتړ اوددوستو هیوادو په بیغرضه مرسته په ۱۳۵۰ کالکی ترخپله وسه پوری خپل بشری وجایب او مکلفیتو نهپه ځای کړیدی .

په هیواد کیدننه ییدمعظمټولواكهمایونی اعلیحضرت دنیکی ارادی اودټولنی دلوړوهدفو نو پهپیروی یوه زیاته اندازه غله محتاجو بیوزلو یتیمانو اوکونډو معلولو اوبی وسو وطنوالوته چهله نورولارویی دغلی دلا سرته راوړلو قدرت نهدرلود وړاکله چه د هغی دویشلو اوتوزیع کارتر اوسه دحکومت په مرسته دوام لری .

همدغه رنگه له خوارانو مصیبت ځپلو او زیانمنو خلکو اوصحی اوعر فانی مؤسساتو سره دټولنی مرستی پهقناعت بښوونکیډول ترسره شوی دی .

دهیواد څخه دباندی تروسه پوری مادی اومالی مساعد تو نهعملیاودسرومیاشتوشیرو خورشید سرخ اوسرو صلیبونو له لاریدنړی مختلفو سیمو ته د همنو عا تـو د ـ مصیبتونو له امله دهمدردی اونوع پالنی پیغا مو نه مخا بر ه شو یدی چه داکارپخپله بشری ټولنو ترمنځ دښو روابطو

په ټينګو لو اونه يوازی دافغانی سری میاشتی دټولنی اودنورو هیوادو دخيريه ملی مؤسسو ترمينځه دښه تفاهم اودمتقابله علايقواواحترام په ټينګتیاکی مؤثر واقع شويدی بلکـــه د افغانستان په معرفی اوپيژند ګلوی اودافغانی ټولنو ددوستانه اوخير خواهانه رويې اولوړ بشری عواطفو په څرګندولو کښی هم مهـم رول لری .

## ګرانو وطـنوالو !

ستاسی مادی او معنوی مرستی په انفرادی ډول وی کـه پـه ډلـه ايزه توګه ، د دولتی مؤسسو له لاری وی که دغير دولتی مؤ سسو دافغانی سری میاشتی دټولنی دخوښی سبب شويدی .

هرګران اوخير انديش وطنوال چه دخپلی وسی اوتوان په اندازه يې دافغانی سری میاشتی دټولنی له لاری له خپلو مصيبت ځپلواوبی وزلو وطنوالو اوهمنوعانو سره مرسته کړی په حقيقت کی يی ديوه صحيح افغان اوصحيـح انسان په حيث خپله مهمه ملی او بشری وجيبه ترسره کړيده دافغانی سری میاشتی له ټولنی سره دحکومت همکاری د ملی حياتی مشکلاتو په حل کولو اوبشری لوړو هدفو نو په تر سره کولو کی دګډ کوښښ ډير ښـــه مثال دی .

په حساسو او عاجلو وختو نو کی دشاهانه زړوری اردو پرله پسی مؤثر او پـه ځـای خدمتونه زمونږ درضائيت اودبشری کړاوونو اومصيبتو نو په ليری کولو کی ددوی فعاله برخه اخستل دوياړنی وړده ليك لـه کوششس او دهغی دغړو ټولنه دبشر غوښتوونکو مرستو اود دوستو هيوادو دبی شائبه مساعدتونو څخه خوښی څرګندوو .

ګرانـو وطنوالـو ! دعلـم او تکنالـوژی په ساحه کی له خارق العاده پرمختګونو سره سره بياهم انسان ددی قـدرت ندی پيداکړی چه طبيعی حوادث ترپوره کنترول لاندی راولی خويوه پرمخ تللی اومترقی ټولنه چه دعلم او تکنالوژی له ښيګڼو څخه برخور داره وی په بشپړ وا وپوره تشکيلا تو سره په لايق ا و

پياوړی پرسونل په عصری وسايلو اوسايطو او په علمی اوعملی قدرت په ګټور اوپه وخت اودعمل په سرعت او صحت سره تريوی زياتی اندازی پوری دطبيعی اوصنعتی ناوړو پيښو دواقع کيدو په صورت کښی دسراو مال د تاوان مخه نيولی شی.

په دی ورو ستيووختو کښی دمصنوعی سپوږمیو له په استفاده سره ديوه طـــوفان دمـو قعيت دحرکت دلوری اوسرعت اونورو خصو صياتو اټکل کيږی اودمخابراتو اوعصری مواصلاتو په وسايلو سره هم خلك اوهم خيريه مؤسسی اوداجتماعی خدمتودايری پوره تياری نيسی. خوپه يوی مخ په ترقی ټولنه کی ددغـــــی امکاناتو اودننني دتکنالوژی دښيګڼو نشتوالی له امله په مصيبت ځپلی سيمه کی دخلکومال او ځان دطبيعی زيانو ناوړوپيښو سره مخامخ کيږی .

زمونږ ديوه مخ په ترقی هيواد په حيث لکه څنګه چه هيله لرودژوندا نه په ټولو برخو کی مثبت اوټينګ ګامونه واخلو لازمه ده دملی اقتصادله انکشاف اوداجتماعی اومدنی پرمختګ سره جخت زمونږ داجتما عی خدمتونو او خير يه اوبشری مؤسسو اداری هم دعلمی اومنطقی منظمو او منسجمو پلانونو له مخه انکشا ف وکړی . څکه که ديوی پيښی دواقع کيدو په صورت کی عاجلی اولمړنی مرستی په خپل وخت اوزمان کی ونه رسيږی يو شمير مصيبت ځپلی انسانان به دپيښی په لمړی مرحله اويوشمير نور به دهغی دوروستی اثراتو په نتيجه کی خپل ژوند له لاسه ورکړی .زمونږ دعصـــر دغوښتنو او واقعيتو نودپه نظر کی نيولوسره دافغانی سری میاشتی ټولنه په دی پوه ده.د ژوندانه په نورواړ خونوکی دانکشافاتو سره يوځای دهغی دتکامل سير يولازمي کاردی چه دهمدی مقصد دپاره پلانونه او پراګرا مونه هم طرح اوتر اجرا لاندی نيول شوی اونيول کيږی .

ددی دپاره چه دا ټولنه ديوی ناوړی پيښی :ووغ سره سمدستی بی لدی چه دوخت له ضايع کيدونه پرته يوشمير وطنوال او هـم نوعان له مينځه لاړشی دستی اوسمد ستـی

مرسته وکړای شي ددی دپاره چه‌په عـادی شرایطو کی ناداره اوبی وزلو وطنوالوته‌خپل بشری خد متونه‌وکړای‌شی ددی دپاره‌چه‌په‌دغه عادی او سهدستی بشری خدمتونه دیوه‌درست پلان اوپروگرام له‌مخی وسنجول شی او پـه معقول ډول ترسره شی بشر دوستانه نوع پالونکی مادی او معنوی مساعدت اوبی غرضه اوخالصانه مرستوته اړتیالری .

هرهغه مرسته اومساعدت چه لدی خیریه ملی ټولنی سره کیږی دسریتوب په اساس دانسانیت له‌مخی اودبشریت په لحاظ تلقی کیږی یوځل بیانوی . کال‌تاسو ټولو ته‌نیك مرغه اوبختور غواړم دلوی خدای لـه درباره هیله کوم افغانی ټولنی ته‌دمعظم ټو لواك همایونی اعلیحضرت په قیادت اودافغا نـی سری میاشتی ټولنی ته‌داعلیحضرت په‌حمایت توفیق ورپه برخه کاندی چه دبشریت عالم ته‌دفیض اوخیر رسولو منبع وگرزی .

# دشورا د دیـارلسمـی دوری دځلورم ګال دلومړی عادی اجلاسی

## د پرانستلو پهوختکېد والاحضرتشهزاده احمد شاه پیغام

بسم‌ا لله الرحـمـن الـر حیم

دشوری د دواړو جرګو محترمو غړو !

خوشحاله یم ستاسو دکالنی رخصت د مودی له‌پای ته رسیدو وروسته دافغا نستان دشوروی‌ددیارلسمی دوری دځلورم ګال‌لمړنی غونډه داساسی قانون دوینا په‌پیروی دمعظم همایونی اعلیحضرت په‌وکالت‌دلوی خدای(ج) په‌نامه پرانیزم .

زه یقین لزم‌چه‌په تیره رخصتی کښی بـه ستاسو لیدنو کتنو یوځل بیا تاسو ته موقع درکړی وی‌چه دخلګو اساسی نیمګړ تیا وی اودملت غمی غتی‌اړتیاوی‌پخپلو سترګووګوری اودافغانستان داولس دلویو توقعاتو په‌مقابل کښی اوملی هدفو نوته درسیدلو اود دولت په‌لاس کښی دموجودو امکاناتو په‌حدودکښی دننه دهغو دپوره کولو په باب خپل نقش‌او مسئولیت په‌ښه ډول وپیژنی .

دهیواد دتاریخ پدی حساسو مرحلو کښی زمونږ نیمګړ تیاوی داغواړی چه مونږ دملی ارزښتونو دژغورنی اوساتنی پلوته خاصـه پاملرنه وکړواوداتولو ملی قوتو نوديو والی اوپه کاراچولو په‌وسیله دمملکت داقتصادی اواجتماعی تحول درفتار ګړندی کولو دپاره خپل کو ښښس جاری وسا تو .

ددی لویو آرزوګا نوپوره کیدل دملـی وحدت دسلامت اودهیواددټولو طبقا تودټینګ تړون ساتلو دپاره دمؤثر واوسالمو لاروچارو پلټنی ته‌اړتیالری په‌دی ځای کښـی مناسب ګڼم‌چه‌دهیواد دخپلواکی‌دبیرته اخستلودځلورـ پنځوسم ګال دشروع په مناسبت دمعظـــم همایونی اعلیحضرت دارشا داتو یوه برخـه دلته رانقل کړم :ـ

دکورنی جبهی انسجام اودهغی دمعنوی‌او مادی‌عناصرو یوله‌بله تړون دبریالیتو بونوپه حاصلولوکی قاطع نقش لری او هغه‌اولس چه داحساس اودتفکر په محیط یی دو حدت رڼا خپره شوی‌وی هرهغه خطر چه‌ددهژوندته متوجه وی ترغتیدو وپخواله منځه وړلی‌شی.

دمملکت داوسنیو حالاتو په‌وړاندی‌اوددغو حالاتو دراپورته شویو مشکلاتو دحل دپاره په داسی حال کښی چـه دشوری ددی دوری وروستی ګا لشروع کیږی ستاسو وظیفـــه داده‌چه دهیواد دلوړتیا اوددولتی چاروداجرا دپاره ددولت دارکانو ترمنځ دهمکاری‌اوتفاهم پیداکولو په غرض خپل باثمره اوپرله‌پسی کوښښونه دمملکت په‌مختلفو چارو کی‌دعمل زیاته چټکتیا ولیدله شی .

په‌داسی‌حال کښی چه‌دپاك خدای (ج) په‌دربار کښی ستاسو دپاره دخپلو دغوګردو مهمـو وظیفو په‌اجرا اودآرزوګانو په‌پوره‌کولو او د ملی امالوپه سرته رسولـو کښی ډیر زیات توفیق غواړم،دافغانستان دشوری ددیارلسمی دوری دځلورم ګال لمړی عادی غونډه دلوی خدای په پاك نامه پرانیزم .

# دسواد دبین المللی ورځی په مناسبت دوالاحضرتی

# لیلما پیغام

بسم‌ا لله الرحـمـن الـر حیم

دسواد دبین‌المللی ورځی په مناسبـــت دپوهنی خلکو اوټولو هغو ځوانانو ته خپلی ډیری ښی هیلی ځرگندوم چه‌په دغی لا ره کښی‌دوطن غوښتنی له‌مخی شپه‌اوورځ کوښښ کوی .

دپوهنی ټولو خلکو ته معلومه ده‌چه‌دلیك لوست دخپریدو هدف یوازی دانه‌دی چه‌ټول خلك دی‌په لیك او لوست وپو هیږی بلکــه مقصد دادی‌چه دقحطی اوآفتږنودپیدا کیدوپه وخت کی‌دهمکاری فداکاری اومرستی لاری چاری‌او پاك دینی معلو مات اوآسما نـــی ارشادات ډیرښه زده‌کړی خلك‌باید دلیــك لوست دزده کولوله‌لاری ـله‌نشراتواومطبوعاتو ځخه‌په استفاده کولو سره دورځنی ژوندانه دحفظ‌الصحی په‌برخه کی‌دمسلك حرفی‌په‌تیره بیا دکرنی په‌باب دساده معلوماتو په‌لاس‌ته راوړلو سره دهغو معیارونو مطابق چه‌اوسنی پیړی یی ایجابوی چمتوشی .

دافغا نستان ولس چه‌فرهنگی لوی میراث له‌لرغونی زمانی ورته پاتی‌دی ،بایداقتصادی او اجتماعی مشکلاتو دکلونو نتیجی اوعواقب چه‌په‌وروستیو پیړیوکی داستعماری تیری‌په اثر پراخه شول لری کړی اوهغه عرفانی مقام ته ورسیږی چه دهیواد دگزان نامه سره‌ښایی اوددی مقصد دپاره له‌بیسوادی سره په‌مبارزه کی‌پرله پسی زیار وباسی هغو رضاکار و استاذانو اوښوونکو او نورو مربیانو ته‌که په بیلوبیلو ادارو اوموسسو کی‌وی که‌دکور نی په‌محیط ، کلی او کو ځه‌کی وی اوددوی‌مقصد دپاره مجاهده کوی دخپلی قدردانی‌مراتـــب ځرگندوم اودلوی خدای له‌دربار ځخه دمعظم ـ ټولواك همایونی اعلیحضرت د نیکمرغه هیلو مطابق به‌دغه پراخه‌مبارزه‌کی‌دگرانو هیوادوالو دبریالیتوب هیله‌کوم .

# دنوی کال په‌مناسبت دصدراعظم پیغام

بسم الله الرحمن الرحیم

## گرانو وطنوالو !

دپرون ورځی په‌تیر یدو سره زمو نـــږ دژوند یوکال پای‌ته ورسید اونن مو نږدنوی کال دراتلو هرکلی کوو .

هغه‌کال چه‌ختم شوسره له‌هغو ټو لـــو مشکلاتو اومحدود یتونو په‌تیره بیا دوچکالی دخبری سره سره زمونږ په‌ژوند کښـــی د هڅی مجاهدت اود همکاری اوتفاهم کال ګڼـل کیږی .

دلـوی او مهـربان خدای (ج) پـه دربار کښی شکر اداکووچه دنوی‌کال په پسرلـی کښی دوروستیو اوربښتونو له‌کبله دفیض او برکت نښی لیدلی کیږی .هیله لرو په‌نو ی کال کښی زمونږ دهیواد دژوند انه لـــــه خیر نیکمرغی او آبادی‌سره‌ملګری وی‌اوزمونږ ګران وطنوال دوچکالی دنتا یجو دلیری کولو اودخپل ژوند دمادی اومعنوی سویی دلوړولو په‌لاره کښی تریخوا زیات تو فیق پیدا کړی

په‌تیر کال کښی په‌هغـه سیمه کښـــی چـه افغانستان پکښی واقع دی‌مهمی پیښی مینځ‌ته راغلی هغـه مشکلات او کړاوونـه چـــه د بنګله دیش خلکو وزغمل اود هند اوپاکستان جګړه زمونږ دکلکی خواشینی سبب شـــوه هیله لرو چه‌په نـوی کال کښـی ددی ناوړه پیښی نتایج دهغو ټولو خلکو په‌مورد کښی لیری شی‌چه له هغی څخه زیانمن شویـدی اودپاکستان اوهندپه نیمه‌قاره‌کی دصلاح‌اونیکو علایقو نوی‌فصل پرانستل شی دمنځنی ختیځ دلانجی دوام دافغانستان دخلکو دتاسفـوړدی اوهیله لروچه نوی‌کال کښی دعربو ملت اود فلسطین خلك دخپلو غصب شویو حقوقو په بیرته لاس ته‌راوستلو کښی بریالی شی .

دسرنوشت ټاکلو دحق د لاس ته راوستلو دپاره دپښتو نستان دملت مبارزه دوام لر ی او دافغانستان ملت له‌دوی سرمدهغوی په‌دی آرزو ګانوکی دزړه دکومی څانونه شر یـــك اوملاتړ بولی هیله لرودنوی کال په تـــرڅ کښی په‌دی لاره‌کښی نوی موثری مر حلـــی ترسره شی .

له‌دی هیلو او آرز وګانو سره دمحبو ب پادشاه دمعظم ټولواك همایونی اعلیحضرت ، علیاحضرتی معظمی ملکی حضور ، خپلو ټولو خویندو او وروڼو وطنوالو او پښتو نستانی خویندو او وروڼو ته‌دنوی کال مبارکی وایم اودلوی خدای (ج) درباره هیله کوم چه‌دنوی کال دنړی دپاره دسولی او آرامی کال‌اوزمونږ دهیواد دپاره له‌خیراو نیکمرغی نه‌ډك کال‌وی.

آمین

# د وطن د خپلواکی دبیرته‌اخستلودخلور پنځوسمی کالیزی د جشن

## پــه‌منا سبت دښاغلــی صدراعظم پیغام

بسم الله الرحمن الرحیم

## گرانو وطــنوالو !

دمعظم ټولواك همايونی‌اعلیحضرت ،دعلیاـ حضرتی معظمی ملکی حضور اوخپلو ټــولــو وطنوالوته دهیواد دخپلواکی دبیرته اخستلو دځلور پنځوسمی‌کالیزی‌صمیمانه مبارکی‌وایم. ځلور پنځوس کالــه پخــوا د افغانستــان دگرد اولس دمجاهدو اوملی‌قیام په‌برکت‌زمونږ دخپل هیواد سیاسی خپلواکی بیرته واخیسته اویوځل بیادنړی ددولتونوپه قطار کښی دیو خپلواك او مضبــوط دولت جــوړولــو دپاره د ژوند په‌نوی لاره روان شو .

د هیواد دسیاسی خپلواکی دلاس تــــه راوړلو دپاره زمونږ‌مجاهدی اومبارزی ،زمونږ په ملی تاریخ او په‌تیره‌بیاد آسیا ددی‌سیمی په‌تاریخ کښی یوه غوره اوځلانده‌باب‌دی ځکه چه زمونږ ملی‌نښته جوخته په هماغه وخــت شروع شوی اوبریالی شوی ده‌چه داستعمار پیاوړی قوتونه‌په دی قاره باندی دخپــــــل پرله‌پسی زیاتیدونکی قوت اوزور په وسیله غالب و .

داخپلواکی ښښونکی ملی مبار زی داسی غوره افتخارونه دی‌چه‌زمونږ ته‌له‌خپلو میړنو مدبرو پلرونو نه په میراث کښی پاتی دی خوددی درنو او غوره ملی افتخار ونو ساتنه دخپلو ملی وجایبو اوذمه واریــو اودنــړی دروانو پیښښودبهیر په وړاندی‌زمونږ اوزمونږ دراتلونکو نسلونو مسئو لیت نور هـــــم درندوی .
هغه سیاسی اقتصادی اواجتماعی تحولونه چه په‌تیره‌نیمه پیړی کښی په‌نړی کښی منځ ته راغلی دی دملی ژونداوزمونږ دژوند دترقــی او انکشاف پلوته زمونږ پاملرنه لاپســــی زیاتوی .

علومو اوفنونودترقی‌سره‌ځنګ په‌ځنګ دخپلو ملی سننواو عنعناتو دپاملرنی اوساتنی سره دخپل اولس دژوند دحالت ښه‌کولو په لار کښی خپل ټول کوښښونه په‌کار واچوو .

دخپلواکی دساتنی او دوام په‌باب زمونږ خورا لوی مسئو لیت ددی غوښتنه کوی‌چه زمونږ اولس خپل ملی مشکلات دیووالی‌په جذبه اوپخپل منځ کښی دمرستی او یووالی په روحیه دملی‌اوتاریخی ارزښتونو اودوخت او زمانی دغوښتنو مطابق اوارکاندی اوددی مشکلاتو دحل‌لاره همیشه‌دوطن‌ټولو اولادونود همت په‌زور دهیواد دلوئی ښیگړی په‌پاملرنه ولټوی .
دمملکت په‌ټولو چاروکښی دوروری مرستی او ملگرتیا اصول داسی غوره عوامل دی چه میوه‌او نتیجه ئی زمونږ دخپلواکی په‌بیر ته اخستلو کښی بریالیتوب ؤ اوهرکال چه‌مونږ ددغه لوی نعمت نمانځنه کوو په‌حقیقت کښی مونږ دغه حقایق یوځل بیادخپل هیواد،اولس او گردی نړی خلکو ته وریادو .

## گرانو وطنوا لو :

د دیموکراتیکو هدفونودخوندی کولودپاره دهیواد دقوانینو اومالی قدرت په‌حدودکښی دننه دخلکو دهیلو دپــوره کولو پــه غرض مجاهده اودنویو ایجاباتو مطابق دملی‌ژو ند په‌تنضیم کښی دبرخی اخستنه له‌هغو وظا یفو ځخه دی‌چه زمونږ دملی وثیقی یعنی‌اسا سی قانون په‌وسیله تنظیم شوی دی افغا نستان په موجوده زمانه کښی دخپل تاریخ په ډیره حساسه مرحله کښی داخل شوی دی اوپــه دی حساس وخت کښی دعمومی هو ساینــی دلاسس ته‌راوړلو په‌لار کښی دعمل چټکتیا او دمملکت په‌ټولو چارو کښی دمځکښی تگ‌اود اجتماعی خدماتو په‌پراختیا کښــی بر خــی اخستلو ته‌زمونږ ضرورت له‌بله هره وختــه

زمونږ فرض دادی چه‌دنړی دتحولاتو اودزیات لیدل کیږی .

## گرانو وطنوا لو :

دوه تیری وچکالی اوهغه فشار چه‌له دغه کبله زمونږ په‌اقتصادی بنیه باندی پریو تلی دی دملی شتمنی دپرا ختیا اوله‌زمکی څخــه دزراعت او فلاحت دنویو طریقو په‌پاملر نــه دزیاتو حاصلاتو اخستلو په‌باب زمونږ وظیفی لاپسی در ندوی .

په‌دی وخت کښی چه ددوستو هیوادو نو اوبین المللی موسساتو همکاری د حکومت دپرله پسی کوششو نو سره‌ترممکنه حـــده دتیرو وچکالیو دبدواثراتو مخه‌نیولی‌ده‌داخپله وظیفه بولم چه‌ددی نیك فرصت په‌استفاده د دوستو هیوادو نو اوبین‌المللی موسساتو د صمیمانه همکاریو په‌مقابل کښی دحکو مت د تشکراتو او قدر دانی مراتب څرگند کړم .

## گرانو وطـنوالو !

زمونږ دسیاسی خپلواکی دوام داجتماعــی ثبات او استقرار اودټولنی اوفرد دحقوقو پــه احترام مشتمل دی .ددولت پـــه وړانـدی د داجتماعی عدالت پر اساس د خلکو دحقوقو او وجایبو ترمنځ توازن اودقانون دحا کمیت اصل زموږ داساسی قانون له‌مهمو ارزښتونو څخه دی .

له دیموکراتیکو آزادیو څخه داستفــا دی دپاره کوشش اودقانون داحکامو مننه زمونــږ داجتماعی هوسایني بنیاد مضبوطوی اوز مونږ اولس خپلو دیمو کراسی هدفونو ته‌نــژ دی کوی .

زمونږ منورین او ځوانان زمونږ دترقـــی ترټولو غوره عناصر دی،ملی ارز وگانــی او ارمانونه هغه وخت په‌ښه ډول پوره کیدی‌شی چه‌زمونږ ځوانان اومنورین یوتر بله لاســـ ورکړی اودهیواد داولاد دسالم تنو یـر پــه غرض دملی روزنی دمشال پـــه‌رڼا بانـدی د سپیڅلو ذهنونو دروښانه کولو دپاره زمونږ دپلرونو نیکونو داستقلال بنسونکو شهکارونو غونډی مجاهداتو ته ملاوتړی‌اوله‌هغو ناورینیو او مشکلاتو سره‌د مقابلی دپاره چه پدی‌برخه کښی زمونږ دلاری خنډ شوی دی متحدقوت منځ ته‌راولی .

## گرانو وطـنوالو !

په‌دی وخت کښی چه مونږ دگران هیواد د خپلواکی دبیرته اخیستلو خاطره نمانځو وایم چه دافغانستان حکو مت دپښتونستانو وروڼو دسر نوشت ټاکلو دحق ملاتړ خپله ملی‌وظیفه گڼلی اوگڼی یی دپښتو نستانو وروڼو د حق ملاتړ په‌مونږ ترهغه وخته پوری جاری ساتــو چه‌دوی دبین المللی‌قوانینواودعدالت داصولو مطابق خپل دغه مسلم حق ترلاسه کاندی .

مونږ امیدلرو چه دعدالت په‌لار ددی‌مسئلی دحل کیدوپه وسیله په‌دافغانستان اوپاکستان ترمنځ دباثمرو اقتصادی اوثقافتی روابطو د زیاتی پراختیا اوانکشاف دپاره په‌زړه پوری حالات منځ ته‌راشی . دنړی له‌هیوادونو پــه تیره بیازمونږ په‌سیمه کښی دپرتو هیوادونو سره دمتقابل احترام اودحقوقــو دمساوات د اصل په‌اساس ددوستانه روابطو پراختیا د گران افغانستان دلویو ښیگړولو پاملرنی‌سره دحکومت ټینگه آرزووده .

دافغا نستان دخارجی سیاست اسا ســی لیکی دمثبتی اوفعالی بیطرفی په‌نورو پــوری دځان نه‌نښلو لواوپه سیاسی اونظامی ډلــو ټپلو پوری دځان نه‌غوټه کولو داولسو نــو او ملتونو دسرنوشت ټاکلو دحق دملاتــړ د استعمار دمختلفوشکلونو اوډولو نو دپایتــه رسیدلو دملگرو ملتو نودمنشور دملاتړ اوپــه جهانی مسایلو کښی دآزاد قضاوت سیاست جوړ کړی دی .

افغانستان چه همیشه داختلافونو داوارولو دپاره دروغی جوړی داصل‌ملاتړ کړیدی په‌دی لارکښی دشویو ټولو جهانی کوششونوستاینه کوی له‌بده‌مرغه اوس هم زمونږ په‌دنیا کښی داسی کشالی شته چــه دتشویشــس او ژوری اندیښنی موجب دی .

دمتجاوزو اسرا ئیلی قواو له‌خوا دعربــی سیمو داشغال جاری پاتی کیدی اودتجاوز له اثراتو څخه استفاده کول دنړی‌سوله اوامنیت په‌خطر کښی اچوی .

مونږ په‌داسی حال‌کښی‌چه‌دعربی هیوادونو دحقوقو اود فلسطین دعرب اولس دمبــارزی مرسته کوو آرزولرو چه‌دعربو په‌خاوره باندی داسرا ئیلو تجاوز اودتجاوز نتا یج پای تــه ورسیږی اوپه دی ډول‌دنړی‌په‌دغه سیمه‌کښی سوله په‌ځای شی اوزمونږ ورو نه فلسطینــی عرب خپل حقوق‌حاصل کاندی .

په‌هندوچین کښی دجگړی دوام اوپراختیا

اود هغی خطرناکی نتیجی یوه بلهمسئله دهچه ددنیا دټولو صلحد وستانو توجهیی ځانته په جدی ډول گرځولی ده .

افغا نستان آرزولری چه دغهخونړی جنگ ډیر زربس شی اوددغی سیمی خلك بی لـه خارجی مداخلی خپلسرنوشتدڅنیو دموافقاتو مطابق وټاکی .

## گرانو وطنوالو خویندو او ورو ڼو:

دخپلواکی مفهوم چـه داستعمار او غلامی دزولنونه په آزادیباندی مشتملدی دانکشاف او مخکښی تگ مفهوم هم پکښی پروت دی ، ددی لرغونی هیواد دخلکو مړنی اولادو نه لکه څنگه چه دخپلی سیاسی خپلواکی داخستلواو ساتلو دپاره داستعمار پهډیر لوی قوت غالب شوی دی دغسی بهدملی وحدت دټینگښت په لار دمملکت داجتماعی او اقتصادی لوړتیا په لار دهرډول اجتماعی مفاسـدو دمبارزی پـه لار چهزمونږ اولس دتباهی پهکنده کښـــی غورځوی اوبالاخره دناپوهی ـ فقر اونارو غی سره دمبارزی پـه لار کښی داجتماعی منفعت دپاره دشخصی گټی دقربانی پهوسیلهدووری اومرستی په روحیه خپل ټول کوششو نه په کار واچوی .

پهدی وخت کښی چهمونږدهیواد دخپلواکی دبیرته اخیستومراسم نمانځو زمونږ پهزړونو کښی دهیواد دستر ځوی شهیـد اوسعیــد اعلیحضرت محمدنادرشاه غازی دمړنتـوب ـ سربښندنی او پیاوړتیا اودهیواد دخپلواکی د لاری د ټولو شهیدانو خاطره نه هیریدونکـی ده اوددوی پاکـو ارواحو تـه دعا استـــوو.

## گرانو وطنوالو :

پهداسی حالکښی چه مونږ دابختوره ملی ورځ نمانځو ، دمعظم همایونی اعلیحضر ت المتوکل علیالله محمدظاهرشاه پـهلاربنودنه دافغانستان لوړتیا ،ترقی ،نیكبختی اوسلامتی دلوی خدای لهدرباره غواړم .

# دکوچنی اختر پــه مناسبت دښاغلی صدراعظم پیغام

بسم‌الله الرحمن الرحیم

## ګرانو وطنوالو !

دلوی خدای (ج) په دربار کښې شکرکوم چه دافغانستان مسلمان اودیندار ملت ته‌ئې توفیق وبانبه چه‌دروژې په مبار که میا ښت کښې خپل دینی فرایض دالهی لارښو دنی په اساس او دارزښتمنو دینی سننو مطابق په‌ځای‌کاندی .

په دې مبارکه میاشت کښې سپیڅلی اسمانی لارښوونکی یعنی قرآن نازل شویدی اوخلکو ته‌یې دعدالت، ورورګلوۍ ،ایمان او پرهیز ګاری لارښودلې ده .

روژه یوه داسې فریضه ده‌چه مونږ ته‌له نفسانی غوښتنو سره‌دمبارزې اوله همنوعانو سره دمرستې ورورۍ اواخلاص وظیفه‌راکوي.

دروژې دمبارکې میاشتې دشپو ورځوپای په‌حقیقت کښې دټولو مسلمانانو دپاره دهغه وخت آغاز دی چه‌په پاکو زړونو اوسپیڅلی روح له‌یوبل سره دمینې ،محبت اوورورګلوی دروابطو دلازیات ټینګښت او وطنوال ورونه یوبل ته‌په مادی اومعنوی ډول دلاس ورکولو درابطې دپیاوړتیا په لارکښې پاخه ګامو نه پورته کړی .

دوطنوالو په‌خدمت کښې ګډون دهیواد په سر لوړی کښې کوښښ اود هر هغه فکرپه مقابل کښې چه زمونږ دملی وحدت په ودانی کښې درزاچوی ، دفاع کول مونـږ ته دخپل موقف دحسا سیت په‌باب خبر داری راکوي.

داوخت چه مونږ په‌تیره میاشت کښې خپل دینی فرایض دلوی خدای (ج) دارادی‌په وړاندی دغاړی ایښودو اوځان سپارنی پــه جذبه پوره کړی دی دلوی خدای (ج) په‌دربار کښې هیله‌کوم چه‌ددغی مبارکی‌میاشتی برکات ټولو وطنوالـو اودګردی نړۍ مسلمانا نـو ته ورسوی .

دواړه اختر دبختو رو ورځو شپو راتګ دافغانستان ددیندار پاچا معظم همایو نـی اعلیحضرت حضور ،دعلیاحضرتی معظمی‌ملکی حضور ، ګرانو وطنوالو ،وروڼو ،خویندو ،د پښتونستان ملت اودټولی دنیا مسلمانانو ـ ته دزړه له‌اخلاصه مبارکی وایم اودلوی خدای «ج» نه‌دګران افغانستان دلوړ تیا او سعادت غوښتنه‌کوم .

# مسافرت ها

## مسافرت اعلیحضرت معظم همایونی و ملکهٔ معظمه به ترکیه

اعلیحضرت معظم همایونی وعلیاحضرت ملکهٔ معظمه بنابدعوت جلالتماب جودت‌سونای رئیس جمهور ترکیه ومیرمن سونای ساعت نه‌وچهل دقیقه صبح ۳میزان ۱۳۵۱ مطابق ۲۵ سپتمبر ۱۹۷۲ ذریعهٔ طیاره سلطنتی کندهار برای یك مسافرت رسمی ودوستانه تشریف فرمای آنکشور گردیدند .

اعلیحضرت معظم همایونی وعلیا حضرت ملکهٔ معظمه باذواتیکه برای غرض وداغ با اعلیحضرتین درمیدان هوایی آمده بودند مصافحه نمودند ، بعداً اعلیحضرت معظم همایونی وعلیا حضرت ملکه معظمه درحالیکه موزیك سلام شاهی رامی‌نواخت مراتب گارد تشریفاتی راقبول فرموده وذات شهر یاری گارد رامعاینه نمودند .

والا حضرت شهزاده احمدشاه والاحضرت شاهدخت بلقیس والاحضرت شاهدخت مریم والاحضرت شهزاده شاه محمود والاحضرت مارشال شاه ولیخان غازی والاحضرت جنرال سردار عبدالولی بعضی دیگر از اعضای خانواده جلیل سلطنتی دکتور عبدالظاهر صدراعظم پوهنوال دکتور محمدعمر وردگ رئیس ولسی جرگه سناتور عبدالهادی داوی رئیس مشرانو جرگه پوهانددکتور عبدالحکیم ضیایی قاضی القضات ستر جنرال خان‌محمد وزیر دفاع ملی دکتور نعمت‌الله پژواك والی کابل بناغلی محمدکبیر نورستانی بناروال سر پرست وبناغلی حسن تولون شارژدافیر سفارت کبرای ترکیه بدربار کابل باخانمش درنزدیك طیاره با اعلیحضرتین خدا حافظی نموده وسفربامسافیت برای‌شان آرزونمودند .

طیاره حامل اعلیحضرتین درحوالی ساعت نه‌وچهل دقیقه ازمیدان هوایی کابل اوج گرفت درین مسافرت بناغلی علی‌محمد وزیر دربار سلطنتی بناغلی محمدموسی شفیق‌وزیر امور خارجه دکتور عبدالغفور روان فرهادی معین سیاسی وزارت امور خارجه سردار محمدیونس مصاحب حضور ذات شاهانه دکتور سعدالله غوثی رئیس تشریفات‌وزارت امور خارجه میرمن ماری نور ندیمه علیاحضرت ملکه معظمه تورن جنرال قمرالدین یاور ذات‌شاهانه بناغلی سخی‌احمد فرهاد والی‌نیمروز دگروال شاه‌ولی یاور علیاحضرت ملکه معظمه دکتور عبدالفتاح نجم جگتورن شمس الدین یاور ذات شهر یاری بناغلی عبد التواب حکمت عضو مدیریت روابط سیا سی بناغلی عبدا لا حد ناصر ضیاء عضو دفترقلم مخصوص وبنا غلی رحمت‌الله اصفی عضو ریاست تشر یفات وزارت امور خارجه شرف معیت اعلیحضرتین را داشتند .

اعلیحضرت معظم همایونی وعلیا حضرت ملکه معظمه بعد ازظهر ٤ میزان وارد انقره شده وازطرف جلالتماب جودت سو نا ی رئیس جمهور ترکیه ومیرمن سو نا ی استقبال گردیدند .

طیاره سلطنتی کندهار در حالیکه ازطرف یکدسته از طیارات جت‌قوای نظامی کشور ترکیه بدرقه می گردید در حوالی ساعت‌دوی

بعد از ظهر بوقت‌محلی‌به‌میدان هوایی انقره فردو آمد . هنگام ورود اعلیحضر تین بـــه میدان هوایی انقره‌بیست ویك توپ برســم احترام شلیک گردید . برای استقبـــال از اعلیحضرتیـن روســای مجلسیـن شــو را قاضی القضات عده از اعضای کابینه باخانـم های شان سفرای دوکشور مامورین عا لـــی رتبه ملکی قوماندانان قوای هوایی بحـــری وزمینی والی وښاروال‌انقره‌وکور دیپلوماتیك درمیدان هوایی انقره حاضر بودند .

جلا لتماب جودت سونای درنزدیك طیاره مستقبلین رابه اعلیحضرت معظم همایو نـی معرفی نموده وذات شهر یاری ذوات همسفر شانرا به‌رئیس جمهور ترکیه معر فـــــی فرمودند .

سپس اعلیحضرت معظم همایونی بـــه اتفاق جلالتماب جودت سونای رئیس جمهور ترکیه سلام گارد احترام‌راقبول وآنرا معاینه کردند . دراین وقت موزیك سورد ملـــی افغانستان وترکیه رانواخت .

پس ازختم مراسم میدان هوایـی ذات شاهانه باجلالتماب جودت سونای د ر یـــك موتر سربازو علیاحضرت ملکهٔ‌معظمه باهمسر جلالتماب رئیس جمهور توسط مـوتر ها ی مخصوص به اقامتگاه اعلیحضرتین مو اصلت فرمودند .

میدان هوایی انقره وجاده های خط سیـر مـوکب اعلیحضرتین با بیـرق هـای ملـی افغانستان وترکیه مزین شده بود .

عده کثیری از شهریان انقره کـه در دو طرف جاده‌ها صف بسته بودند باکف‌زدن‌های ممتد وهلهله هاکه از احساسات گرم آنهـا نمایندگی میکرد از اعلیحضرت معظم‌همایونی وعلیاحضرت ملکه معظمه استقبال نمود ند .

جلالتماب جودت سو نای وهمسر شـا ن اعلیحضرتین راتاقصر اقامتگاه شان همراهی نموده وبعداز صرف قهوه مراجعت کردند .

اعلیحضرت معظم همایونی وعلیا حضـر ت ملکه معظمه‌ساعت‌چهاروبیست‌وپنج دقیقه‌وقت محلی باجلالتماب جودت سونای رئیس‌جمهور وهمسر شان‌میرمن سو نای در قصر ریاست جمهوری ملاقات نمودند .

اعلیحضرت هنگام مواصلت به‌قصرریاست جمهوری ازطرف جلالتماب جودت سو نا ی وهمسرشان وښاغلی یولتن وزیر خار جـــه وهمسروی استقبال شدند .

اعلیحضرت معظم همایونی ساعت‌پنـج و چهل وپنج دقیقه وقت محلـی سفـرای دول خارجی متعین انقره رابه حضور شاهانه در اقامتگاه شان پذیرفتند .

دراین موقع ښاغلی علی‌محمد وزیردربار سلطنتی ښاغلی محمد موسی شفیق وزیـــر امور خارجه وبعضی دیگر از ذوات معیتـــی ذات شاهانه حاضر بودند .

اعلیحضرت معظم هما یونی وعلیـا حضر ت ملکه معظمه ساعت هشت شب ٤ میزان‌بوقت محلی درضیافتی اشتراك فرمودند که بـــه افتخار اعلیحضرتین ازطرف جلالتماب جودت سونای رئیس جمهور ترکیه وهمسر شا ن میرمن سونای درقصر چایکایا مقر ر یا ست جمهوری ترتیب شده بود .

دراین ضیافت علاوه بر ذوات معیتــــی اعلیحضرتین فریدملن صدراعظم روســـا ی مجلسین شورا ښاغلی‌هالوك‌بایولکن وزیرامور خارجه ترکیه و همسر شان و عده از رجا ل برجسته ترکیه وسفرای کبیر هر دوکشـــور اشتراك نموده بودند. همزمان باآغاز ضیافت موز یـــك سرود ملـی افغا نستـان وترکیه رانواخت .

دراین دعوت مجلل که‌تاساعت ده شب‌دوام کرد بیانیه های‌بین اعلیحضرت معظم‌همایونی وجلالتماب جودت سونای تعاطی گردید .

پوهنتون توبینگن دیـد نکـــردند در این کتابخانه یك سلسله‌کتب که در موردتاریخ جغرافیه وفرهنگ افغانستان روشنی می‌اندازد وجود دارد. متعاقبا دکتورعبدالظاهر صدراعظم به‌پوهنتون توبینگن رفته ازطر ف رئیســـس پوهنتون یکتعداد استادان و شاگردان استقبال شدند. درمحفلیکه درسالو ن کنفرانسها ی‌این پوهنتون دایرشده‌بود دکتورعبدالظاهرصدراعظم دکتور محمد یوسف سفیر کبیر اعلیحضر ت معظم همایونی دربن وښاغلی ریشارد برو یر سفیر کبیر جمهوریت‌اتحادی المان درکـــابل بیاناتی ایراد کردند . ښاغلی صدراعظم طی بیانیه گفتند :

**جلالتماب رئیس پوهنتون، دوستان گرامی !**

برای‌من‌وهمراهانم موجب مسر ت‌است که دراین اجتماع دوستانه‌اشتراك مینما ییم .

مساعی‌شمابرای گرد آورد ن یکعده دانش مندانیکه به‌کشور ماازجنبه های‌مختلف علمی علاقه گرفته اندموجب امتنان وسپاسگذار ی من میباشد .

ترتیبات مجللی‌که ازطرف شما دوستا ن افغانستان برای‌معرفی بیشترافغانستا ن روی دست گرفته‌شده بدون شك در معرفـــت و آشنایی مردمان مانقش لازمه راحایزمیباشدو این بذات خود مظهر علاقمندی مردما ن‌کشور دوست المان به‌افغانستان میباشد .

دراین اجتماع دوستانه میخوا هم بـــه نمایندگی از مردم افغانستان بهترین وصمیمی ترین تمنیاتی که مردم‌افغانستا ن دربرا بر دوستان المانی خود بذل می پرورانند ازشما سپاسگذاری نمایم .

افغانستان وآلمان دوکشوریکه دردوقاره کهن واقع شده‌اند از سالــها بـاینسو باهــم علایق صمیمانه ودوستانه برقرار کرده اند.

بعد مسافه بین‌ما وشما هیچگونه مانعی بوده نمی تواندوبامسرت ملاحظه‌میکنیم که‌مردمان‌ما وشماآرزومند توسعه علایق مودت ودوستی‌می باشند دراین لمحه به‌خاطر می آورم که اولین رساله عمده زبان شناسی مربوط دوزبا ن مهم افغانستان یعنی دری وپښتو رادو دانشمند بزرگ المانی ویلهلم گایگروپاو ل هور ن در قرن نزده تحریر کرده وپس از ایشـــان دانشمندان المانی وهمه جهان در نقش قلم ایشان دراین طریق‌مساعی مزید صر ف‌کرده اند.

ازتاسیس مناسبات سیاسی بین کشور های مابیشترازنیم قرن سپری گردیده‌نیم‌قرنیکه شاهد همکاری های ارزنده بالمر درسا حه های مختلف فرهنگی ،اقتصادی و تخنیکی می باشد.طی این‌سالیان علماو دانشمندان ألمان ازیك سوجنبه های‌مختلف طبیعی وبشـــر ی افغانستان رامطالعه‌کرده‌اند وازسو ی دیگردر بلند بردن سویه علم ودانش جوانا ن‌افغانی که‌درپی تحصیل ومعرفت برآمده اند کمك و مساعدت بسزایی انجام دادموباین گونه مبانی دوستی‌افغانستان والمان رامستحکمتر ساخته اند. ماخوشبختانه‌می‌بینیم که‌در کار تشکیلات اداری علمی وفنی یکعده‌زیاداین جوانا ن‌بعد ازفراغ تحصیل ازلیسه نجات ودارالفنو ن‌های مختلف کشور شما برای‌انجام خدمت بـــه افغانستان مشغول مساعی‌شباروزی میبا شد.

همچنان انجنیران ومتخصصین المانی در ساختمان پروژه های مفید افغانستان درپهلوی رفقای‌المانی‌خود خدمات فراموش ناشدنی‌انجام داده‌اندکه بعضی تاپنجاه سال سابقه دارنداین ارتباطات وهمکار یهای متقابل در راه‌شناسایی بیشتر مردمان المان وافغانستان وتقو یه‌بنیان دوستی دوکشورمانهایت مفیدوارزنده بوده و ماآنرا باقدردانی‌یاد آور میشویم .

توامیت یکعده موسسا ت مطالعات عا لی هردو کشور درزمینه های‌اقتصاد ساینس و بشرشناسی سبب پیشرفت سطح دانش در این ساحات در افغانستان گـردیده و مـورد قدردانی مردم مامیباشد .

مسافرت من به این‌شهر زیبا ومرکزپرورش علماودانشمندان یکی‌ازبهترین قسمت هـا ی

مسافرت وباز دیدمن از کشور بزرگ المان میباشد. اشتراك دراین اجتماع بزرگ دانشمند انیکه درمحوطه دارالفنون بزرگ آن شهر امروز حضور بهم رسانیده اند درحالیکه مرا بیاد خاطرات تحصیل وتدریس می اندازد موجب مسرت خاص من است خاصه اینکه موضوع علاقه مندی این دانشمندان جنبه های مختلف شناسایی افغانستان می باشد. من درحالیکه ازپذیرایی گرم وکلمات پرحرارت رئیس پوهنتون اظهار تشکرمیکنم موفقیت بیشتر دانشمندان و استادان این شهر تاریخی رادر راه ارتقای سویه دانش بشری استحکام صلح ودوستی وهمکاری بین مردمان وملل آرزونموده سعادت وکامیابی آن جوانانیراکه بهترین سالیان زندگانی شان برای کسب علم ومعرفت سپری میگردد تمنا مینمایم

همچنان ښاغلی صدراعظم بعدا در دعوت نهاری اشتراك کردندکه ازطرف پروفیسرهان به افتخار شان ترتیب شده بود .

بعدا دکتور عبدالظاهر صدراعظم وهمراهان شان رهسپار شهر شتوتگارد شدند .

دکتور عبدالظاهر صدراعظم پس از یک مسافرت رسمی ودوستانه به جمهوریت اتحادی المان ساعت هشت و پانزده دقیقه قبل ازظهر روز ۲۸ ، سنبله توسط طیاره آریانا به کابل مراجعت کردند .

والاحضرت جنرال سردار عبدالولی ، پوهنوال دکتور محمدعمرورد ك رئیس ولسی جرگه ښاغلی علی محمد وزیر دربار سلطنتی ښاغلی محمد موسی شفیق وزیر امورخارجه که هنگام مسافرت ښاغلی صدراعظم وکالت صدارت رابعهده داشت واعضای کابینه جنرال های اردوی شاهانه ،بعضی از اعضای هردو جرگه شورا ،مامورین عالیرتبه ،والی کابل وښاروال سرپرست ، پښتونستانی های مقیم کابل ودکتور کلیان شارژدافیر سفارت کبرای جمهوریت اتحادی المان در میدان هوایی بین المللی از ښاغلی صدراعظم استقبال کردند.

# دمؤظف حکومت دکړنلاری متن

**بسم الله الرحمن الرحیم :**

**محترمو وکیلانو !**

زموږ دمتبوع پاچا اعلیحضر ت په اراده اود دولت داساسی قانـون د ۸۹ مادی دحکم په پیروی دحکومت دتګ لاری‌اوغړو دمعرفی .پاره داولسی جرګی په دی غو نډ ه کښی ګډون کوم .

هغو مقاصدو ته‌ژر ترژره درسیدو په لار چه داساسی قانون په‌دیبا چه‌کی بیان شوی اویاورته اشاره شوی ده داوفغانستان دخلکو خدمت دحکومت لوی هدف دی .

په همدغه منظور که‌چیری حکومت له دی محترمی جرګی څخه دباور رایه واخستله، نو دهغو چارو دکار فهرست به‌جوړ کړی چـه امیددی دخپل طبیعی عمر دلسو میاشتو په کمه موده‌کی اود اداری دعادی چارو ترڅنګ به‌یی په‌اجراء موفق‌شـی . دکار دافهرست ددی څوکلیاتو اومطالبو دپاسه ولاړ دی چه په‌لنډ ډول یی بیانوو :

دملی مسایلو په‌سر کی دهیواد اقتصادته سمدستی او کلکه توجه راګر ځول شوی‌ده .

په‌دی برخه کښی دحکومت فعالیتونه‌نژدی هدفونو ته درسیدلو پلوته متوجه دی‌او له بلی خوا زیاراېستل کیږی چه داوږدی مودی داهدافو بنیا د تر ممکن حده پور ی تحقق موندلو ته‌تیار شی .

**اقتصادی چاری :**

د هیواد اقتصا دی مشکلا ت په مختلفو وختونو کی اومنجمله زما دمحترم سلف د حکومت دتګ لاری دوړاندی کولو په‌وخت کی بیان‌شویدی اودمحترمی جرګی ته دخلـو رم پلان دمسودی د وړاندی کولو پـه وسیلـه یی غځ‌غځ تکی بیالیږی .

داحکومت عقیده‌لری‌چه داقتصادی مشکلاتو او اجتماعی مسائلو حل داساسی اصلا حاتو دپروګرام جوړول اود هغه په اجرا لا سس پوری کول غواړی دهمد غه اصل له مخی زموږ په‌عقیده ملی هدفونو ته‌درسیدلو دپاره دعامه اقتصاد او خصوصی اقتصاد په تنظیم اهمیت ورکوی .

کی دحکـومت دلار ښودنـی و ظیفـه با یـد تقویه شی .

داقتصاد اوږدی مودی دپر وګرام اصلـی هدف دملی عوایدو زیاتوالی اودهغو خلکو د ژوندانه دسطحی جګولو په‌لار کی نی پـه مناسبه اوعادلانه طریقه لګول دی چه دملی عایداتو برخه‌یی ډیره خواره ده .

دپنځه کلنو پلانونو جوړول او تطبیق د مادی او بشری منابعو لاسس ته‌راوړلو توزیع او داستفادی دپاره غـوره لار ګڼـل کیږی حکومت به دانکشافی او اقتصادی فعالیتونو دتنظیم دپاره دپلان جوړولو لاری چاری نـه پریږدی او دافغانستان د څلورم پنځه کلن پلان مقصدونو ته درسیدو و سیلی لوټـی لاری اوهدفونه چه پخوانی حکو مت منځ ته راوستی دی تائید وی .

څرنګه چه اقتصادی او اجتماعی واقعیتونه تل بدلیږی رابدلیږی نو دپلان د تطبیق په دوران کښی دواضحو اقتصادی او نویو ـ احصائیوی معلوماتو له‌مخی دپنځه کلنوپلانو پرهدفونو او روشونو دکالنیو پلانونو پـه چوکاټ بیانظر اچول کیږی په‌دی ډول هیله کیږی چه‌په لنډو فاصلو کښی دڅلورم‌پنځه کلن پلان اوآینده پلانونو تطبیق دافغانستان له‌اقتصادی واقعیتونو سره مطابقت ولری .

حکومت به‌په آینده کی دپلان جوړولو او په‌ښه ډول داقتصادی پیښو اوتغییرا تـو د ټول اوسنجش دپاره چه انکشافی پلان پری متکی وی دپروژی جوړولو د یوی مؤسسـی دتشکیل بنیاد کیږدی اواحصائیوی فعالیتونه به‌دلازمه تشکیلاتو دتحکیم له لاری منسجـم کړی .

**کرنه اومالداری :**

دهیواد داقتصادی رغاونی دتحلیل په رڼا کی‌په څلورم پلان کښی دکر نی انکشاف ته دلومړیتوب حق ورکړ شوی دی .. داحکومت هم په‌دغه واقعیت باندی دېو هی له مخـی ددغی سا حی انکشاف او پرمختګ ته لازم

په‌دې ساحې پورې مربوط داوږدې مودې په پروګرام کې دمؤثرو زراعتي عواملو د برابرولو داوبولګولو د اوږ سنیو سیستمو نو دسمون اوبیا ودانولو داوبولګولو دوړواولویو پروژو دجوړولو په وسیله اوبې ځمکوبزګرو او کوچنیانو ته دځمکې برا برولو دپا ره دمتکا شفو لارو څخه استفا ده لوی اهمیت لری .

په ملی عاید دهیواد په‌صادرا تـو او اسعاری عواید وکی دمالداری دسکتور نسبی برخه د پاملرنې وړده. له‌بده مرغه دپرله‌پسې وچکالیو له‌کبله دې برخې له درونو تاوا ن پیښ شو اوپه ځینو برخوکښې د ژوندانه شرایط بیخې زیانمن شول . داحکو مت څخه کوی چه‌ددغه سکتور د سمدستي او داوږدې مودې دمسئلو دحل دپاره ددولت دامکانا تو په‌چوکاټ کې دننه کاروکړی .

دکوچنیانو او پوونده‌و دژوند حال چه دتاریخی ، اجتماعی او جغرافیوی واقعیتونو پیدا واردې ایجابوی چه دهغوی درو غتیا او تعلیم پلوته لازمه توجه وشی چه په‌ملی اقتصاد کې د دوی تأثیر نور هم زیات شی. دکرنې دانکشاف په پرو ګرام کښې‌دغلودانو په تیره بیاد غنمو دصنعتي زر اعتي پیدا وارو زیاتولو ته دړومبي توب حق ورکو ل کیږی چه افغانستان له‌یوی خوا د څلورم پنځه کلن پلان په وروستیو کلو کې دغنمو له‌پلوه پخپل کور پوره شی اوله بلې خوا صنعتي مشکلات اود (پور) د ورکړ ی بیلانس سپك شی .

دې هدف ته درسیدو دپاره دکیمیا و ی سرې او کرنې پورونو غوندې دکر نی دښو اواثر ناکو وسیلو څخه کار اخیستل کیږی اوپه‌کوم ځای کې‌چه بشری قواوی په مؤثر او اقتصادی ډول کوم کارونه کړای شی . هلته به‌له عصری ماشیني وسیلو څخه کار واخستل شی .

دبز ګرو دګټې دساتنې اود راز راز کرنی دامکان اودصنعت ،زراعتي اُمتعود دتولیداتو دلازیاتولو په‌غرض دغنمو او نورو زراعتي تولیداتو دپاره د قیمت مناسب او اقل حد تثبیت کیږی .

دصنایعو دانکشاف په ساحه کې چه د څلورم پنځه کلن پلان دپالیسی له مخې دوهمه درجه اهمیت لری لار ښودل شو ی ګډ روښ تعقیبیږی اوله عامه او خصو صی منابعو څخه ددې ساحې درشد او پرا ختیا دپاره مؤثره اوډیره استفاده کیږی .

## دصنا یعو انکشاف :

په اقتصادی ژوند اود دولت په‌عواید و کی ددولت دصنعتی تصدیو دمطلـو بـې او مؤثری برخې اخستلو دپاره ددغو مؤسسـو اداری کیفیت اود هغو داداری بنې دبدلو ن هغو صنایعو تاسیسول چه دملی ګټو لـه نظره اهمیت لری دحکو مت په‌غاړه دی اود اقتصادی او تخنیکی مطالعاتو له‌بشپړ ید و وروسته داقتصادی شرایطو سره سم دهغو په‌منځ ته‌راوړلو لاس کیږی .

په دولتي صنایعو اوخصوصی صنایعوکی‌د هیـواد له داخلی اُومو موادو او بشری‌قواوو څخه استفاده دپانګې اچولو معیار دی ترڅـو پدې ترتیب له‌یوی خوا دملی عوایدو پـه زیاتیدو کې دمؤسسو نقش زیات شـی او له‌بلې خواداستخدام سویه لوړه شی . د غه راز هغو صنایعو ته دلمړی توب حق ورکول کیږی چه دصادراتو دزیاتیدو او وارداتـو دکمیدو سبب کیږی .
زیار ایستل کیږی چـه دکانونو اوسنـی پروژی ژر تکمیل اوله هغو څخه د استفا دی کولو مرحله رالنډه شی .

د افغانستان دنویو کانونـو څخـه ګټـه اخستل اود هغو دفنی مسئلو حل کول او هغوته دبازارونو پیدا کول لویی پنګی او ستر تخنیکی پوهه غواړی چه‌په او سنـی مرحله کې دځار جې منابعو څخه له استفادی نه پرته مشکل بریښی ځکه خوله کا نـو څخه داستفادی‌دنفتوډذخیرو دپلټو اوورایستلو دقوانینو موجو دیت دافغانستان له طبیعـی شتمنیو څخه داستفادی دپاره په زړه پـوری لار برابروی .
حکومت ددغو قوانینو ورو ستی طـر ح تکمیل کړی اوپه دې برخه کې‌به لازم مقررات وضع کړی . دبریښنا انرجی دعصر ی کرنی

او صنايعو د ودې دپاره دضروري بنياد په حيث گڼل کيږي . دبر ينبنا لـه اوسنيـو دستگاو څخه نهايي استفاده اودافغا نستا ن په مختلفو سيمو کې داوبودبريښنا دکوچنيو دستگاو جوړول ددې حکو مت په پرو گرام کښې داخل دي. دهغو پروژو پهمنځ تهراتلو باندې لاسں پورې کيږي چه مطالعاتي مراحل يې بشپړ شوي دي اوزيار ايستل کيږي چه دتوليدي ظرفيت او دويشں دشبکـو ترمنځ توازن برقرار شي ترڅو اقتصا دي تاوانونه کم شي .

له اقتصادي او اجتماعي پلوه دکار گر و تقويه اود عصري روشو نو مطابق د دوی د حقوقو تثبيت دحکومت داقتصادي اواجتماعي سياست له نظره ضروري گڼل کيـږي . د همدغه مقصد دپاره به دکار او کارگر دنوی قانون طرح تکميل شي اودهغې دتصمو يبيدو تروخته پـوري بـهحکـومت دکار گرانـو د مزد اقل حد دمقرراتو پـه ذريعه وټاکـي او صنعتي مؤسسې به دصحي بيمو په تشکيلولو مکلفي کړي .

دموا صلاتو پهبرخه کښې زيار ايستـل کيږي هغو پرو گرامونو او پروژو تـــه د لمړی توب حق ورکړی شي چه دتو ليـدي سکتور ونـو مرستيـال وی او د تـوليـد او استهـلاك دمرکزونـو دپيـوستون لـه لارې پرتوليد اوويشـں بانـدې سملا سـې تأثير ولري .

دسړ ك جوړولو پهپـروژو کښـې هغـو طرزونو ته د لمړی توب حق ورکول کيږ ی چهبشپړ لگښت يې ټيټ اوپه مختلفو سيمو کښې داستخدام دسو يې پهلوړ ولو کښـې اساسي نقش ولري .

دمالي منابعو زيات او خطر ناك کمښـت داقتصـــادي ودې او دانکشا فی پـروژو او پرو گرامونو تطبيق پهلاره کښې يوغټمشکل گڼل کيږي . افغانستان کهله نورو زياتـــو مخ پـه ترقي هيوادو نو سره مقا يســـه شي نووبه ليدل شي چهبه کافـي انـد ازه کورني منابعنهلري دانکشا فی پروگرا مونو دمالي ضرورت پوره کولو دپاره د ضروري منابعو لويه برخه لهخارج څخه برابريږی .

دانکشافی لگښتونو دپـوره کولو دپاره د

مرستو څخه دمؤثري استفادې ضرو ر ت د خارجي قرضونو دورکړی مسئلي او دورځـ په ورځ زياتيدو نکي عادي لگښت د پو ره کولو کوششں اوپهتيره بيا داجتماعي خدماتو برابرول زمونږ اقتصادي حالت داسې درجيته رسولی دی چهله داخلـي منا بعو څخـه د عوايدو زياتوالی يیيوه ډيره مهمه اواساسي مسئله گرځولې ده .

که چيرې افغانستان خپل دا خلي عوايد په کافي اندازه زيات نهکړی شي نو يوازې دانهچه اقتصادیرکودبهدوام وکړی، بلکهددولت دعوايدو داو سنيـو شرايطو لـه مخې بـه دخار جي مرستو څخه دافغانستان داقتصادي جذب ظرفيت ډيرکم پاته شي .

که اوسنی نامساعده وضعه دوام وکـړ ی نوحکومت به ونشي کړی چهلازم اجتما عـي خدمات لکه عرفاني ، صحي اونوري چـار ی چه دافغانستان دټول اولسں آرزو ده پــه مناسب ،مطلوب اوغير متمرکز ډولدافغانستان داو لسں دپاره برابر کړی .

دا حکـومت دداخلـي منابعو د زياتوالـي دپاره په دولتي اوخصوصي سکتور کې کلك اقدامات حتمي گڼي ترڅوپهدې ډولدانکشافي لگښت پهتمويل اودپانگې پهتشکل کښې د داخلي منابعو ونډهډيره شي .

د دولت پهعوايدو کښې دمستقيمو ماليود نسبي سهم ډيرښت ددولت دعوايدو دترکيب چه دمالياتو اوسني قوانين پهمؤثر ډولتطبيق شي دمترقي ماليی اوداستهـلا کـی تجملـي مالونه دماليی ځينی قوانين طرح او تعد يل دښه توب معنی لری دا آرزو هله ترلا سه شي چه دمالياتو اوسنـي قوانيـن پهمؤثـر ډول تطبيق شي، دمترقي ماليی اوداستهلاکي تجملي مالونهدماليیځينیقوانين ،طرحاوتعديل شيله دولتي تصديـو څخه پـهمؤثـر ډول ښيگړه وا خستله شي اوباقيات پهجدیتوگه ترلاسه کړی شي .

له داخلي منابعو څخه پهخورا ښه ډول کار اخستل زيرمې تهدخلکو تشو يق کو ل دی . ځکهخودماليی مؤسسو اوبانکو نـــو تأسيس اوتقويه اود هغو دشبکی پرا ختيـا پهنظر کښی نيول شو يده اود بانکـدار ی دروابطو دتنظيم دپاره به دبانك دعصـــر ی

داخلي مالي منابعو کموالي اوله بهر نيـــو قوانينو طرح جوړه شي .

داقتصادي اومالي پروګرام پهجوړ و لو کښې به دپښتو د ارزښت اود قیمتو نو داستقرار مرأعات وشي اوتروسه پوري به دبېلزومه پولي پراختیا چه دقیمتونو دلوړیدو باعث کیږی مخه ونیوله شي .

خارجي تجارت اوله نورو اقتصادي فعالیتونو سره دمغه سمون نوي تنظیم ته ضرورت لري چه دیوه ټاکلي سیاست له مخې دافغانستان خارجي تجارت پراختیا ومومي .

په دې دوره کې بهلهداسي طریقو څخه کار واخستل شي چه دصادراتو دزیاتیدو اود وارداتو دکمیدلو باعث شي . داسعارو دنرخ دټاکلو سیستم باید داسي اصلاح شي چه پهیوه ټاکلې موده کښې دافغانستان ټول صادرات داسعارو لهآزاد نرخ څخه مستفید شي اود صادراتي موادو مولدینو ته زیاتي پیسي لاس ته ورشي .

د داخلي صنایعو دتقویې او حمایې او د ګمرکي تعرفو دتنظیم اونورو لازمو وسایلو له لارې دتادیاتو دبیلانس دمشکلاتو د لیرې کولو دپاره دوارداتو کمولو ته باید پاملرنه وشي دصادراتي موادو داصلاح او زیاتوالي دپروژو په تطبیقولو کښې باید لهچټکتیا څخه کار واخستل شي .

موږ بهداهڅه وکړو چهداقتصاد په برخه کښې دنظر اوتجربې دخاوندانو یومجلس دایر شي او هغوی دهیواد پهاقتصادي مشکلاتو یوه علمي څیړنه وکړي او حکومت نه دځلکو دژوندانه دسویې دلوړیدو دلارو پهباب خپلې څرګندې او عملي مشوري ورکړي .

ددې محترمې جرګې لهغړو اولههغو ټولو وطنوالو څخه چهپدې برخه کښې پوهه اوتجربه لري هیله کوم چه حکومت تهدخپلو نظریاتو پهراليږلو سره دوطن داقتصاد په جوړښت کښې زموږ سرهبرخه واخلي .

داساسي قانون په حدود کې دننه موږ تهمیځکله دا اجازه نشته چه داسي ټولنه ولرو چه پههغې کښې څیني خلك هرو مرو فقیر اوځیني نوري حتماً بډای اوسي .

دپانګې زیات تراکم او ځای پهځای پاتې کیدل اویایي دسیاسي مقاصدو دتحمیلولو دپاره په کار اچول هغه اندول خرابوي چه دهغه نهپرته موږ به خپله ټولنه باندې دمترقي ټولنې او پههغه قانوني نظام باندې چه ددغې ټولنې لاربښوونه کوي دمترقي نظام نوم نشو ایښودلای . پهداسي حال کښې چه دشخصي مالکیت اصل په څرګند ډول منل شویدی هم یې پهحدودو او هم یې په استفاده باندې دقانون پهموجب ، قیود وضع شوي او وضع کیږي ،دملکیت په باب دتقنین دغه سیر باید دهغه تحولي تګ سره سمون وخوري اود ملي لوړو مصالحو دنهایي هدف تابع اوسي چه دژوند انه په همیشه بدلیدونکي حرکت کښېمینځ تهراځي.

## پوهنه او روزنه :

حکومت به کوښښ وکړي چه دښوونې او روزنې خطیرو وظایفو دپاره دلایقو اشخاصو دپیژاندلو اود هغوی دپهکار اچولو له لارې دښوونې او روزنې عصري طریقې دمعارف او پوهنتون دپاره تراستفادې لاندې راولي . دپوهنې په درسي نصاب باندېباید په داسي ترتیب نوی نظر وشي چه دهغوله مخې شاګردته د داسي مضامینو درس ورکړی شي چهدده فهم دټولنې دګټور خدمت دپاره چمتو کاندې اوهم پهده کښې ملي او سیاسي شعور پیدا کړي . ددې مقصد دپاره باید د درسي موادو معلوما ت دملي او بین المللي حالاتو دبدلون اود علومو د همیشني پراختیا سره سمون و خوري . همدغه رنګه باید تعلیمي نصاب دعبارت او انشاء له مخې داسي جوړ کړی شي چه دشاګردانو دسویې لوړولو کښې اغیز ناك نقش ولري . موږ د ځوانانو دپاره د داسي پرو ګرامونو جوړول ضروري او ګټور بولو چهپهرخصتي او وزګاروخت کې دهیواد او د دوی دروزنې دپاره ګټور اوثمر مشغولیت پیدا کاندې همدغه رنګه ځوانان باید د کنفرانسونو او سیمینارونو پهجوړولو او له مسئولو اشخاصو سره دتماس له لارې دچارو په واقعي جریان خبر کړی شي .باید دهیواد په ورزشي حالتپهبشپړ توګه نوی نظروشي او دانکشاف لارې دې یې پهمؤثر ډول ترکتنې لاندې ونیول شي .

... مور عقيده لروچه محصلين‌بايد د خپلو مربوطو مسائلو په‌تنظيم کې تربيوي چار ي وي که اجتماعي روابط او که ورزشي‌فعاليتونه وي داسې برخه واخلي چه دهغوي دتحصيلي دورې له ماهيت سره‌سمون او ارتباط و لري او ددرسونو په‌باب ددوي په اصلي وظيفه کښې خلل پيښس نکړي.

د پوهنتون اواستاذ انو په سر پر ستي سره ددې سهمگيرې لـه ډول او در جې څخه اود محصلينو دفعاليتو نو دتنظيم پـه لارکي له‌دوی سره دهغوي مرستـه يقيناً لـه دغه ډول لازمو تجربو څخه دښوونې اوروزنې په کته اوداکاد ميکي روزنې له لارې‌دسياسي ودې په‌کټه مثبتي نتيجي لاس‌ته راتلي‌شي .

بايد دښځو په روزنه اوپه ملي ژوندکې ددوی دمثبتي برخې‌اخستلو اودټولنې دمترقي هدفونو دوړاندې بيلو په‌چارو کښې د دوی تيارولو ته لازياته پاملرنه وشي .

**دوي مهمي اداري :**

له‌بيسوادی سره دمجادلې‌دپاره په‌يوه ملي اداره جوړه شي‌چه دسواد دپرا ختيا د پاره د ځوان‌قوت دپه‌کار اچولو له‌لارې يو منسجم پرو گرام تراجرا لاندې ونيول شي .

حکومت په‌دخپل کار د دورې په ميا شتو کې‌خپله برخه دمغې وظيفې داجرا کولو دپاره چه داساسي قانون د ٣٥ ما دې پـه حکـم د دولت په‌غاړه اېښـودل شـوې‌ده دمؤثـرو اقداماتو له‌لارې ادا کړي او هغه څه به چه تعميل يې داجرا ئيه قوې په‌صلا حيت کـې دې عملي کاندی او هغه چه‌تطبيق يې دشورى په تصميمو نو پورې اړه لري شورى تـــه محول کړي .

داطلا عاتو او مطبوعاتو په‌برخې کـې بـه عمومي هدف داوي چـه دخلکـو اود و لت داورگا نونو ترمينځ دمقابل افهام او تفهيم امکانات مينځ ته راشي اود سمعي اوبصر ي خپرونو په‌پراختيا سره به داسې مؤسسـې جوړې کړي چه دملي‌اوعامه تصديـو په‌حيث دعامو خلکو او د درې گونو قواؤ دافکارو په خر گندولو سره ملي‌ارمانو نه ترسره کاندی اود بين المللي رقابتونو سره سره زمو نږ دملي‌هويت دساتنې او تقويې قدرت ور سره وي اود ملي اوبين المللـي خپرونـو پـــه خپرولو کښې دبيطر في او ژ ور ناليستيکو معيارونو ملاحظه په‌نظر کښې ولري اودغوری عواملو تراغيزی لاندی راشي .

داطلا عاتو ا و کلتور په مرکز کـې بـه دعامه ارتباط يوه اداره مينځ ته‌راشي چه د حکو مت اومطبو عاتو ترمينځ دوصل ديـوی کړې په‌حيث خدمت وکړي اودهغو دسوالونو ځواب ووايي .حکومت به له‌خلکو سره‌دتماس اوپه مستقيم ډول اود مطبو عاتو له‌لارې دهغو په احوال باندې‌دخبر يدو دپاره يـو منظـم پروگرام تعقيب کاندی .

حکومت به‌په دقت سره دمطبوعاتو په‌مقابل کې داساسي قانون اود مطبو عاتو دقانـو ن داحکا مو په‌تيره بيا ددې قانون دلومړۍ ما د ې دمندر جـو اهدافو دترسره کيدو مرا عا ت وکړي اوپه‌عين وخت کې بـه د مطبو عاتـي جرايمو څخه دراپيدا شويوقضا ياو دسمدستي تعقيب دپاره يواغيزه ناك نظام مينځ ته‌راولي داحکومت به‌توجه وکړي چه‌غير دولتي جرا يـد دحکومت داعلا نونو دخپرولو له درکه په‌نسبي طور تقويه شي.

په‌کلي ډول دمطبو عاتوپه باب دحکو مـت رويه دبيان دآزادی او د ملي مصا لحو عامه امن اونظم دساتنې اوله هرډول تعرض څخـه دشخصي حرمت دساتلو تـرمينځ دتـوازن د دقيقې ساتنې رعايت کول دی .

حکو مت داساسي قانون مطا بق صلاحيت لري‌چه دخلکو دژوندانه دچارو دتنظيم دپا ره دقوانينو دجوړولو پيشنهاد شورى ته‌وړاندی کړي او داساسي قانون په ٧٧ ماده کښـې دذکر شويو عاجلو حالاتو په‌وخت کښـــې تقنينې فرمانو نه‌ترتيب کاندی .

دحکو مت دغه مکلفيت چه‌په خپله زمونږ د عصر يوه غوښتنه ده‌مونږ ته‌موقع راکوی چـه دافغا نستان داجتماعي اقتصا دی او سياسي ژوند دبيلو بيلو اړخونو پـه‌حقوقـي تنظيـم کښې دبشری ژوند دښپږيدونکي خصوصيت دپا ملرنې سره پر له‌پسې برخه واخلو .

دعلم‌الاجتماع له‌نظره اودهيواد دحقو قي جهاز دمترقي ماهيت له مخې حقوقي بنسټ دا ايجابوي چه داسلام دشريعت په مقدسو حدودو کې دغه دغه‌حقوقي‌بنسټ په‌تقويه کې زيارو باسو . له‌همدې امله‌په هيواد کــې دقانون جوړولو په نهضت کې چه داسا سي

قانون پەنافذ ید و سره دیوه مشخص جریان په ډول شروع شویدی ، دحکومت مکلفیت دیوی تاریخیوظیفی په حیث ځر گند یږی داحکو مت دی جریان ماضی ته‌په پاملو نه اود هغو ارزښتمنو اقداماتو لەمخی چه پدی برخه کښی دانتقال پەدوره کیشوی او په وروستیو دورو کښی تریوی اندازی پور ی تعقیب شو یدی وعده کوی چه دهغو قوانینو دنشتوالی څخه دپیدا شوی خلادلیری کو لو دپاره چه تدوین یی دیوه دیمو کراتیك نظام دبشپړیدو اولوړتیا اود اقتصادی اجتماعی او سیاسی ژوند دتنظیم د پاره په دغسی یوه نظام باندی دمتکی ټولنی دپاره حتمی گڼل کیږی مؤثره هڅه وکړی .

دکار اوکار گر قانون لەمخکی اوکانونو څخه دحاصل اخستلو مربوط قوانین اوهمدغه رنگه داسلام په شریعت بنا دجزا دقانون اومعاملاتو دقانون دمسودو ترتیب پدی پرو گرام کښی شامل دی .

**داساسی قانون دمطالعاتو مرکز :**

حکو مت هیله لری چه داساسی قانون پەباب دمطالعاتو یومرکز تاسیس شی چه علماء اود صلاحیت خاوندان داساسی قانون اود هغه دمتممو قوانینو دتطبیقاتو په باره کښی علمی او مقایسوی مطالعات پکښی وکړی اولاس ته راوړی نتیجی یی خلکو اود دولت ارکان ته وسپاری . دقانونجوړولو دنهضت دتقویی پەڅنگ کښی بل لوی او اساسی سوال دقوانینو دتطبیقولو موضوع ده چه‌په ننني نړی کښی دهر حکو مت طبیعی او حیاتی وظیفه گڼله کیږی. ددی خبری په پاملرنه چه دقوانینو کامل اومؤثر تطبیق د خلکو اود دولت داورگانو نو دهمکاری نه‌پرته له امکانه لیری بریښی‌دتذکروړ خبره دابولو چه دحکو مت پەنظام کښی بەدننه دقوانینو دتطبیق د څارونکو مؤسسو دتاسیسو لو او تقویه کولو کار اود هغو دچلولو په سیستم کښی نوی‌نظرهم دپاملرنی وړوی ترڅو چه داغیزناکو تدابیرو په وسیله دقانون نه دمخالفو اعمالو ارتکاب ، محدود شی ، ددی مطلب لەمخی دقانون مطابق دعامه نظم اوامن دبر قراری دپاره دلازمو تد بیرو نو غوره کول دحکو مت ستر مکلفیت گڼل کیږی اود هغه داغیزناك تطبیق دپاره پەهغه ډول چه دخلکو په ژوند حقوقو اوحیثیت باندی دتیری مخه ونیوله‌شی کوشش کیږی . همدغه رنگه دجرم دتحقیق وظایف په محاکمو کی د هغه دتطبیق اود جرایمو پەعدلی تعقیب پوری نورمربوط اقدامات به دهغو ملاحظاتو سره یو ځای چه دعمو می نظم او امن دساتنی دپاره دمتهم‌فردی حقوق دقانون په حدود و کښی دننه رعایت‌شی دپاملرنی وړ وی .

ددی مقاصدو دتر سره کولو دپاره دهغو اورگانو نو په تنظیم باندی نوی نظر ته ضرورت دی چه‌داجرائیه قوی دننەدغه وظایف ترسره کوی. ددغو مطالعاتو پەنتیجه کی چه دداخله اوعدلیه وزارتونو دصلا حیتو نو دخیرلو څخه عبارت دی، حکومت عقیده لری چه دهیواد دامنیت پەمسؤله دستگاه او د جنایی عدالت داداری پەساحه کښی د عصر دغو ښتنو سره سم لازم اصلاحات راشی اودقاچاق ، رشوت اونورو اداری مفاسد و پەشمول دجرایمو دمخنیوی دپاره مؤثره او پرله‌پسی مبارزه وشی .

**مخدره مواد :**

حکومت بەپه خارجی او بین المللی مرسته په هیواد کښی دمخدره موادو دکرلو دواقعی مخنیوی په برخه کی کوشش وکړی چه بزگران ددغو موادو دغیر قانونی کرنی په ځای نور مواد وکری اوخپل ژوند پر سمبال کړی یاداچه هغه دقانون په اجا زه اود طبی مقاصدو دپاره وکړی اوپه دا خلی او خارجی ذیعلاقه مؤسساتو باندی یی په جایزه طریقه دخرڅلاودپارەترتیبات غورەشی. باید دمخدره موادو دغیر قانونی زاکړ ی ورکړی او نورو هیوادو ته دافغا نستان له لاری دهغو دانتقال دمخنیوی دپاره مؤثر تدبیرو شی اوپری ښودل شی چه‌له د ی درکه زمونږ هیواد دمخدره موادو دبین‌المللی قاچاق برانو دفعالیت پەمرکز بدل شی اوددی خاوری دشریفو خلکو ملی گټو اوبین المللی حیثیت تەصدمه ورسیږی .

دهغو ټولو کسانو دمعنوی او مادی حالت ښه کولو ته پاملرنه چه دجرایمو د کشف او تعقیبولو او دملی مصئو نیت او امنیت په مهمه وظیفه بوخت دی اودقانون داحکامو مطابق دافغانستان دمنافعو په خلاف دحرکاتو دمخنیوی دپاره وظیفه اجرا کوی ، دعا مه

مصالحو اوگټو دساتنې دپاره ضروري گڼل کيږي . پدې برخه کې دحکومت مرام بايد دپوليس ددولت تشکيل‌نه بلکه ددولت دپاره دپوليسو تشکيل وي .

دمحبسو نو اوبنديانو حالت ته پاملر نه هم ، حکومت له ضروري اوعاجلو مسايلو څخه بولي اوپه‌هغو پوري‌مربوطو پروگرامونو ته‌به هم توجه وکړي .

دقوانينو اود عدلي تعقيب ددستگاه ترڅنگه دامنيت په ساتنه کښې دقضالويه برخه هم بايد ذکر شي .

په حقيقت کې دمحاکمو له خوا دقوانينو تطبيق دخلکو په‌ذهنو نو کښې دهغې‌موازنې حدود روښانه کوي چه موجوديت يې‌دجرايمو دارتکاب په‌برخه کښې يو واقعي ضمانت‌گڼل کيږي .

دمؤثر کيدو په غرض په‌اداري تشکيلا تو باندې بيانظريو غوره ملي مرام‌گڼل کيږي .

ددې حکومت په‌عقيده اداري اصلاح بايد دې ټکې ته‌متوجه وي‌چه‌په لږ پرسونل ، ډير کار ، ژر اومنظم سرته ورسيږي .

دا حکومت دمامورينو داداري چارو پلټنه او څارنه دسزا اوجزا دپرنسيب له‌مخې ډيره ضروري گڼي . دچارو دمستقيمې پوښتنې په غرض به‌په صدارت عظمى کښې د څار نې او انسجام يوه دايمي اداره‌منځ ته‌راوړل‌شي دا اداره به‌دهغو رکودو نو مخ نيوي کوي چه بې موجبه ددولت اووطنوالو دچارو دسا لم جريان په‌مخ کښې خنډ کيږي .

**د دولت دمامورينو اقتصادي وضع :**

په دې سلسله کښې د دولت دمامورينو داقتصادي وضع دبهبود اودنرخونو له‌جگيدو سره دتوان په اندازه دهغوى دمعاشو نو د تناسب ساتنې ته‌بايد پاملرنه وشي زموږ ددې آرزو علت ددوى اود هغوى دکورنيو په مقابل کې‌يواځې بشري عواطف‌نه‌دي بلکه‌موږ عقيده لرو چه ديوه مامور دوضع ښه تو ب داداري فساد دمخ نيوى په لار کښې ستر عامل گڼل کيږي موږ آرزو لرو چه‌دولاياتو اومرکز مامورين تروسه وسه دماموريت له امتيازونو څخه برابر اويورنگ استفاده وکړي .

دخپلوا کې ساتنه ملي حاکميت اودهيواد دخاورې تماميت دافغا نستان له شا هـ

اردو سره مقدس امانت دى ، څکه‌خو دهغه مقام اوحيثيت ته دايمي احترام اوددې سترې وظيفې دانجامو لو دپاره دهغه مجهز کولو او مجهز ساتلو ته‌دايمي توجه دحکو مت وجيبه ده .

**خارجي سياست :**

دافغانستان د خارجي سياست دتگ لارې دمستقلې او مترقي بنې ساتل له ملي‌اساسي هدفونو څخه گڼل کيږي. دنه ترون دسياست له پيروانو دخپلواکې دلارې له مبارزو د نړۍ په مختلفو لويو وچو کښې داستعمار د مختلفو شکلونو او مظا هرو له مقا و مت کوونکو لنډه داچه له‌هغو لويو اولسونو سره موږ‌طبيعي ملگري تيا لروچه په دريم جهان کښې په‌خوښې او خپکان کښې ورسره شريك يو .

دافغا نستان خارجي سيا ست به دنه انسلاك دمثبتې اوفعالې بيطرفۍ په‌اساس دوام وکړي . دملگرو ملتو دمنشور دلوړو اصولو احترام اودبين‌المللي‌همکارۍ دپراختيا دپاره دهغې مؤسسې دکوششو نو تائيد د خلکو اوولسونو دحقوقو ملاتړ ، داستعمار زوال په هررنگ اوشکل چه‌وي ، له‌نژادي ـ توپير سره مخالفت د بين‌المللي جنجالي مسئلو په‌حل کولو کښې دقوې نه استعمال اوپه روغه دگه ژوند تائيد ـ دافغا نستان دخارجي سياست ټينګ ستنې دى . دد غه منظور له‌مخې به‌دغه حکومت له‌ټولو ولسونو سره دمتقابل احترام او آزادۍ همکار ی په اساس چه دحقوقو دبرابر يت او د دوه اړخيزه علايقو په پراختيا په‌تيره بيا له دو ی سره دخپلو ښو عنعنوي روابطو په ټينگولو متکي وي ددوستۍ دپياوړي کولو دپاره هڅه وکړي . دهمدغو هدفونو له‌مخې به‌افغانستان دغير منسلکو هيوادو او اسلامي ملکو نو په‌گډو کوششو نو کې خپل سهم ته دوام ورکړي اوپه نظامي تړونو کښې به‌له گډون څخه تل ځان په څنگ ساتي .

**دپښتو نستان مسئله :**

زموږ دپښتو نستانو وروڼو د سرنوشت ټاکلو دحق په‌باب زموږ ملاتړ اوپلوی توب چه دافغانستان حق اويوه‌ملي او تاريخي وظيفه ده دافغانستان داولس داداري په

پیروی څنګه چه‌په ډیرو رسمی اعلا میو کښی بیان شوی په‌نه بدلیدو نکی او پاخه ډول به دوام وکړی .جوته ده چه استعما ر پدی سیمه کښی دپیدا ښښت له‌لمړی و خت نه دی ته‌متوجه ؤ چه‌له افغانستان سره د پښتـو نستان د خلکـو طبیعی او تاریخی پیوندونه سست او ضعیف کړی .
افغانستان ددغو کوششو نو دنتیجو محوکولو ته خپل کوششو نه اړم‌کړی دی ددی‌مضبوطو پیوندونو لاټینګیدل یی یوعمده هدف ګرځولی او ګرځوی یی .

دوطن دګډو ګټور دساتنی دپاره دآزادو قبایلو سره دورورګلوی کلك پیوندو نه ، دافغانی ملی وجایبو څخه دی اوموږ به‌تـل دهغو دپالنی دپاره زیار باسو .

زموږ دخار جی سیاست غوره هدف‌دادی چه دنړی دټولو ملتونو په‌تیره ددی سیمی دملکونو سره ښه مناسبات ټینګ وساتو . موږ دپاکستان له ملت سره ژو ر تاریخی اوکلتوری روابط لرو .

دپښتونستان دملی مسئلی اوپه دغه باره کښی دپاکستانی حکو متونو له دریغ نه پرته موږ دپاکستان ددولت سره د دوستی اوښو روابطو دپراختیا او ټینګتیا په لاره کښی بل‌خنډ اوبندیزنه لرو .

**دګاونډ یانو سره ښه روابط :**

دګاونډ یانو سره ښه روابط لرل هم‌زموږ دملی ګټو سره‌سم دی اوهم ددی سیمی د سولی په‌ګټه دی .

دایران له دولت سره ددوستانه روا بطو ټینګوالی دملی ښیګڼو دساتنی سره د خپل لوی ګاونډی دچین دخلکو دجمهو ریت سره دښو روابطو لاقوی کول چه ددغه هیواد دنوی رژیم له‌راتلو سره سم منځ ته‌راغلی دی اود دغو دوو ملکونو ترمنځ دګټـوری همکار ی پراختیا دافغا نستان دخار جی سیاست جزء ګڼل کیږی .

دشوروی اتحاد سره دښه ګاونډ یتو ب او دوستانه روابطو دایمی ټینګوالی پرله‌پسی دافغانستان دخلکو ، مشرانو او حکومتونو دتوجه وړ او وروسته به‌هم وی .

ددی دوو ګاونډی هیوادو نو ترمنځ چه بالکل یوله‌بل سره جلاو بیل سیاسی او اجتماعی نظامونه لری ددوستی اوښومناسباتو ناموس سره غاړه غړی کاندی اود ملـــی ساتل دیوبل ملك ته ددواړو ملکونو د مشرانو تګ راتګ دافغا نستان سره د شوروی اتحاد سود منی اوارزښتناکی تخنیکی او اقتصادی مرستی چه وروستی مظهر ئی د هیواد دڅلورم پنځه کلن پلان په عملی کولو کښی زموږ ددوست او ګاونډی ملك دبرخی اخیستلو دپاره دیو تړون لاس لیك کول دی دافغا نستان دخلکو اوحکو متو نو په‌زړونو کښی دتل دپاره زیات ارزښت‌لری .

په دی دوو وروستیو کلو نو کښی چه کوم خطرناك حالات په‌نیمه قاره کښی منځ‌ته راغلی دی دافغا نستان دخلکودزیاتی تلوسی سبب شویدی دافغانستان خلك څنګه چه دپاکستان اود هند له خلکو سره لرغونی علایق لری‌دغسی یی‌دبنګله‌دیش له‌ملت سره هم تاریخی اوکلتوری روابط لرل اولری یی په دی ورځو کښی دافغنستان او بنګله‌دیش ترمنځ دتجار تی اوقو نسلی روابطو دټینګولو موضوع دلاس لاندی ده او سیاسی روابط به‌په یو مناسب وخت کښی دبنګله دیش د حکومت سره له خبرو اترونه ور و ستـه برابر شی .

دافغا نستان حکومت په دی عقیده دی‌چه دپاکستان ،هند اوبنګله دیش دملکو نو ترمنځ دعادی روابطو او اقتصادی همکار یو ټینګیدل ددغو دری واړو هیوادونو اود آسیا ددی سیمی دخلکو دپاره ګټه‌لری . دعر بو ملت چه‌دخپلو تروړل شوو حقونو دبیاالاس‌ته راوستلو دپاره دبین المللی صهیو نیت د پرله پسی تیریو په‌مقابل کښی کومه جګړه نښلولی ده افغانستان یی‌په کلکه سره ملاتړکوی .د فلسطین دعربو د سرنـو شت ټاکلـو حق چه‌په یوه خونړی جګړه بو خت دی او خپلی پلارنی اصلی خاوری ته ددو ی دواپس ورتللو حق‌ددی غوښتنه کو ی چه باید دمنځنی ختیځ دکشالی پـه‌هـر ډو ل پریکړه کښی دوی پوره لاس‌اوګډون ولری.

**ملی وظیفی :**

اساسی قانون زموږ خلکو ته دیوکل په حیث یونظام وړاندی کوی په دی‌کل کښی دافغا نستان دنتی ملی ژوند بنسټ په‌داسی ډول ایښودل شویدی چه‌باید اوسنی ژو ند چال چلند دژوندانه دپرله پسی بدلیدو نکی

پیژ ندګلوی اوکلتور اساسی اوبنیادی ښبی ښښانی پکښبی خوندی وساتل شی .

کله چه مونږ دغه‌نظام ته‌یوکل وایو په حقیقت کښبی دهغو ګټو بنسټونو څخه چه ددی نظام فلسفی او حقوقی بنسټ ګڼل‌کیږی ددوو اصولو دذمه واری دمننی ښکاره اعلان کوو . له دی دوو اصولو څخه یو دادی چه دټولو مؤسسو او عناصرو په‌سالمی رغاونی اود هغی په‌کار اچولو باندی‌روښانه عقیده ولرو چه دغه عقیده د دیموکراسی دپا لنی زانګو اود منظمی فایدی اخستلو وسیله بللای شو. له‌دی کبله هم‌په حقوقی برخو کښبی اوهم په اداری برخو کی دلومړ نیو چا رو برابرول روښانه کول دحزبونو دمنځ ته راتلو اوجوړولو اود خلکو دښکار ندو یو ښاروالیو دراتګ ـ دغه شان په ولایا تو کښبی داغیزه ناکو سلا کارو جرګودراتلو د پاره دخلکو دذهنونو روښانه کول اود فعالیت دوسیلو برابرول داټول **د حکومت و ظیفه** ګڼل کیږی .

په دی ځای کی دنورو ځایونو په‌شان په رښتیا سره داساسی قانون‌او نورو **قوا نینو** دحکمونو رعایت ساتل اوپه پاخه ډول دد غو حکمونو عملی‌کول ، دخلکو حکومت اود دولت ملی وظیفو **څخه ګڼل کیږی** .

دوهم اصل دادی چه‌حق او واجب دواړه غبر ګونی دزړه له‌کومی څخه ومنل‌شی ددولت دریواړو ارګانونه رسمی کاروالان په سیاسی فعالیتونو کښبی دبر خی اخستلو شو قمن ځوانان او هیواد وال او آخردافغانستان ټول اتباع داساسی قانون په‌حکم داو ظیفه لری چه‌په کومه اندازه چه‌ددغه قانون له‌حقوقو څخه دګټی اخستلو لیواله دی‌په هغه کچ‌میچ دی دخپلو وظیفو دپه ځای کولو په‌ذمه واری ځانونه پوه کاندی او هغه دی په خپله غاړه واخلی .

څوك چه‌په یونظام کښبی خپلی ذمه واری په‌غاړه نه اخلی یایی رعایت نه کوی د هغه نظام دحقونو څخه دفایدی داخستلو قانونی توب یی‌بی له‌شکه ګډ وډیږی .

په‌یوه ټولنه کښبی دمدنی توب‌محوردقانون دنظام په‌ټینګار دقوانینو دعملی کولو په ذمه واری او ورسره دمساوات داصل درعایت کولو په‌بنسټ کلك ولاړ دی .

دا حکومت به دحقیقی اوحکمی اشخاصو دقانونی مکلفیت دځرګندولو دپاره زیا ر وباسی چه داسلامی شریعت حکمو نه په‌ښه توګه ترتیب کړی اوهغه په‌رسمی ژبو کښبی دټولو خلکو په‌لاس کښبی واچوی .

په‌کومو برخو کښبی چه قوانینو اومقرراتو ته فوری ضرورت لیدل کیږی حکومت به دخپلی وسی سره سم اود خپل کار په‌موده کی دننه‌ګامونه واخلی.

کوم قوانین چه‌د څو کالو راهیسی دلاسس لاندی نیول شوی دی هغه‌به‌په څو راتلونکو میاشتو کښبی دتقنینی مرحلو تیرو لو ته سپارل کیږی .

په ټولنه کښبی دقانون دنقش دټینګتیا په برخه کښبی زمونږ کړن لاره داده :

په مملکت کی دقوانینو دعملی کولو نه پورته بل‌غوره مصلحت وجودنه لری .

اوکه‌له مانه کوم شعار غواړی زما شعا ر **دادی :**

**دقانون په سیوری کښبی حکومت ، دقانون په‌رڼا کښبی حکومت .**

څه چه می په‌تیرو پاڼوکی او لسی جرګی ته وړاندی کړل یوڅه مشکلات، یوڅه‌هدفونه اود هدفونو دټاکلو دپاره یوشمیر آرزوګانی وی . له‌دغو آرزوګانو څخه به څومره چه د دولت مادی‌اوبشری قدرت ددی حکومت د طبیعی عمر په څو میاشتو کښبی اجازه‌راکوی هغه به‌دعمل میدان ته راوباسو .

که‌چیری په‌کار کښبی کومه ګډوډی پیښیږ ی تاسی نه یقین درکوم چه‌هغه به دنیت او ارادی له کبله‌نه‌وی بلکه دعملی کولو له درکه به‌وی .

موږ په‌دی ښه‌پوهیږو چه دحکومت ددرنو وظیفو په‌سرته رسولو کی‌په‌تیره په دی نازك اومشکل‌وخت کښبی‌مونږداولسی جرګی، مشرانو جرګی او قضا ئیه قوی دټینګی همکاری او قانونی مرستی نه پرته بریا لی کیدای نه‌شو.

زه عقیده لرم‌چه دحکومت او شوری ترمنځ دمفاهمی ، مرستی او ارامو خبرو اترونه پرته دملی مسئلو د حل سمه لاره نه شی موندل کیدای .

حکومت به زیار وباسی چه دشوری سره دخپل‌ارتباط دسمولو له‌لیاری اوپه ټولو چارو

کښی ددی‌ارتباط دبرابرولو په‌مرسته دمفاهمی، همکاری اوخبرو اترو دپاره ډېره خوږه فضا برابره کاندی .

حکومت هغه نقش تـه‌هم زیاته پاملرنه لری چه داساسی قانون دحکمونـو لـه مخه په‌ملی ژوندانه کښی دقضا ئیه قـوی په‌غاړه پروت دی .

دخلکو اود دولت ددوو رکنونو له خـو ا قضا ئیه قوی ته‌په درنه سترگه کتل بې‌له شکه ددغه‌نقشـس په‌تأثیـر او اغیزه کښـی لازیاتوالی راولی .

په‌داسی‌حال‌کی چه‌مونږ به‌داساسی قانون د مکلفیتو نـو د احسـا س سـره سر ه دملی هدفونو دځوندی کولو او پوره کولوپه لاره کښی دقضاله رکـن سره اغیـزه ناکـه ملگرتیا کوو، باور لرو چه‌ددغی قوی واکمنان اوکار والان به‌کټ مټ دهمدغه احساس له مخه دهمدغو هدفونو دپوره کولو په برخـه کی له مونږ سره همدغه رازمرسته اوملگرتیا کوی .

هره ټولنه ځانله شعایراو رغاونې لری‌چه یوله‌بل سره دهغه له‌گډ ارتباط څخه د ملی او ثقافتی بڼې احساس کیدای شی .

اوله دی څخه هغه نښی نښانی اوښیگڼی څرگندېږی چه مونږ دهغو دپیـژ ندلو پـه واسطه یوه ټولنه له‌بلی ټولنی څخه جـلا او بیله گڼو .

داسلام دپاك دین تعلیمات اودمشرو طـه پادشاهی بنسټ چه‌زمونږ په‌فر هنگ کښـی همیشه دخلکو سره ملگری دی ددی هیو اد درواياتو اودودونو سره‌چه‌دنړی دځومدنیتونو زانگو ده داټول زمونږ دملی‌او معنوی‌رغاونې اساسی بنسټ گڼل کیږی .

کله چه‌مونږ داساسی قانون په چوکا ټ کښی دننه خپلی ملی چاری تر‌پاملرنی لاندی نیسو نو بایدچه‌دفکر اوعمل دیو رنگ والی او دتگ لیاری دروښا نولو په غرض دشکل اوخیری له‌مخه‌هم په ادب ، هنراو تعبیرا تو کښی دخپل‌ملی کلتور خیره اوبڼه وساتو .

**هغه کسان چه‌په دی حکومت کښی‌غړیتوب لری دادی :**

١ـ دخار جه چارو وزیر پخپله صدر اعظم (محمد موسی شفیق) .

٢ـ دملی دفاع وزیر سترجنرال‌خان‌محمد .

٣ـ داخله وزیر داکترنعمت‌الله پژواك .

٤ـ مالیه وزیر ښاغلی‌محمدخان جلالر .

٥ـ دفوایدعامی وزیر ښاغلی‌خوازك‌ذزلمی .

٦ـ داطلا عاتو اوکلتور وزیر ښا غلـی صباح‌الدین کشککی .

٧ـ دمخابراتووزیرانجنیر نصرت‌الله ملکیار.

٨ـ دکانو او صنا یعو وز یـر دپلـو م انجنیر غلام دستگیر عزیزی .

٩ـ دکرنی او اوبو لگولو وزیر دا کتـر عبدالوکیل .

١٠ـ دپلان‌وزیر داکتر عبدالواحد سرابی.

لکه چه دمخه اشاره وشوه دهغو وزارتونو په‌برخه کښی به‌چه تراوسه یی وزیران نه دی ټاکل شوی یو څـه اد لون بـد لـون راوستلی شی .

دغسی وزارتونو اود هغو نورو وزارتو نو چاری به‌چه وزیران ورته‌نه دی ټاکل شو ی دځپاو معینانو له‌خوا داجرا لاندی نیـو ل کیږی اوعام سیاسی مسؤ لیت‌به‌یی په خپله دصدراعظم په‌غاړه وی .

په‌دغه لړکښی هر کله‌چه دقبایلو دمستقل ریاست اوسنی تشکیلات دهغو درنو او مهمو وظیفو سره چه حکومت یی‌په دغه بر خـه کښی په‌غاړه لری سمون نه‌خوری حکومت به ددغه ریاست تشکیلاتو دپوهو اوخبیروکسانو په وسیله دڅوری څیړنی لاندی ونیسی اوکله چه‌ټول کارو باریی سرته ورسیږی ،نوبیایی داداری واحد په‌سر کی یو وزیر وټاکلی‌شی.

زه دافغانستان دخلکو په فطری پوهـه باندی یوه‌نه بدلیدونکی عقیده لرم. نوله‌دوی ټولو څخه په‌تیره ددی هیواد له دردمندو او پوهو ځوانانو څخه هیله لرم چه دملگر تیـا اوملاتړ په‌لاره کی زمونږ آرزو گا نـی تـر سره کړی .

مونږ ټینگک امید لرو چـه دافغانستان د پادشاه اود ملی ژوند دلارښود همایـو نـی اعلیحضرت دحکیمانه لارښودنو په سیو ر ی کښی دخلکو او ځوانانو دملاتړ او مر ستی په‌برکت دهیواد دلوړ تیاپه لاره کښی یوگام هرڅوکه لنډوی پرمخ واخلو .

لوی خدای دی چه‌ټول شیان او ټولی‌چاری دده په قدرت کښی دی زمونږزیار او کوښښ فایده من وگرځوی اوزمونږ پادشاه، خلك او وطن دی‌په خپل امن کښی وساتی .

# اعلامیهٔ دارالتحریر شاهی

بعد از آنکه دارالانشاء ولسی جرگه تصویب تاریخی ۲۱قوس ۱۳۵۱(ه،ش) آن جرگه دایر برابر از رأی اعتماد به‌حکومت‌وخط مشی ښاغلی محمدموسی شفیق صدراعظم مؤظف رابه اطلاع رسانید وبعد از آنکه‌مراتب بحضور اعلیحضرت معظم همایونی عرض گردید ،فرمان پادشاهی مبنی برتعیین‌خود معزی الیه بحیث صدراعظم ووزیر امور خارجه افغانستان وفرامین پادشاهی مبنی‌بر تعیین ذوات ذیل بحیث اعضای حکومت شان مطابق به‌حکم مادهٔ ۸۹ ـ قانون اساسی‌از حضور شاهانه شرف صدور یافت :

۱ـ ښاغلی ستر جنرال خان محمد بحیث‌وزیر دفاع ملی .

۲ـ ښاغلی داکتر نعمت‌الله پژواك بحیث‌وزیر داخله .

۳ـ ښاغلی محمد خان جلالر بحیث وزیر مالیه

٤ـ ښاغلی خوازك زلمی بحیث وزیر فواید عامه .

٥ـ ښاغلی صباح الدین کشککی بحیث‌وزیر اطلاعات وکلتور .

٦ـ ښاغلی انجنیر نصرت الله ملکیار بحیث وزیر مخابرات .

۷ـ ښاغلی دیپلوم انجنیر غلام دستگیرعزیزی بحیث وزیر معادن وصنایع .

۸ـ ښاغلی داکتر عبدالوکیل بحیث وزیرزراعت وآبیاری .

۹ـ ښاغلی داکتر عبدالواحد سرابی بحیث وزیر پلان .

# مختصر سوانح بناغلی محمد موسی شفیق صدر اعظم

بناغلی محمد موسی شفیق در سال ۱۳۱۰ ـ هجری شمسی درکابل تولد شده وتحصیلا تش را در رشتهٔ حقوق اسلامی در پوهنتون الازهر قاهره بدرجهٔ لیسانس رسانیدند .

بناغلی شفیق درعلوم قضائی ازپوهنتون مذکور درجهٔ مافوق لیسانس رانیز حایز شده اند . بناغلی صدراعظم در رشتهٔ حقوق بین الدول هم از پوهنتون کولمبیا نیو یارك درجهٔ مافوق لیسانس را دارند ، همچنان بناغلی شفیق درمسایل بین‌المللی ازپوهنتون هار وارد امریکا تصدیق حاصل کرده‌اند . بناغلی شفیق بعداز ختم تحصیلات عالی بحیث استاد حقوق بین الدول خصوصی در پوهنځی حقوق وعلوم سیاسی پوهنتون کابل مقرر شده وبعداً بصفت مدیر عمومی قوانین وزارت عدلیه رئیس تقنین وزارت مذکور ومتعاقباً بحیث معین‌آن وزارت ایفای وظیفه کرده‌است .

بناغلی شفیق عضو ومنشی کمیتهٔ مطالعه قانون اساسی وعضو ومنشی کمیسیون مشورتی قانون اساسی وبعداً بحیث منشی عمومی وعضو لویه جرگهٔ سال ۱۳۴۳ ـ نیز بوده‌اند . بعداز انجام وظایف متذکره بناغلی شفیق بحیث مشاور در وزارت امور خارجه مقرر شدند وپس ازمدتی بحیث سفیر کبیر اعلیحضرت معظم همایونی در قاهره ،بیروت، خرطوم واکرا انتخاب گردیدند .

بناغلی شفیق درکنفرانس جهانی‌حقوق‌دانان در شهراتن ودر کنفرانس مستشرقین در لاهور بحیث عضو اشتراك نموده‌وازهیأت افغانی در کنفرانس کشورهای فاقد سلاح ذروی منعقدهٔ ژنیو، ریاست نموده‌اند .

بناغلی محمد موسی شفیق ریاست هیأت افغانی رادر کنفرانس وزرای خارجهٔ کشور های غیر منسلك درجار جتون کنفرانس وزرای خارجهٔ اسلامی منعقده جده وبیست‌و هفتمین دوره های اجلاسیهٔ مجمع عمومی ملل متحد رابعهده داشتند .

بناغلی شفیق بزبانهای پښتو، دری ، عربی ،انگلیسی وفرانسوی حرف میزنند و می نویسند ودر زبان پښتو ودری شاعر و نویسنده بوده ودر حدود یکصدو بیست‌مقاله برای جراید ومجلات وطن در موضوعات سیاسی ، حقوقی وادبی نوشته اند .

دواثر بناغلی شفیق بشکل کتاب نیزطبع شده است ،ودرمجله حقوق‌بین‌الدول ،دومقاله روی مسألهٔ تابعیت وتاریخچهٔ حقوق بین ـ الدول خصوصی نشر کرده‌اند .

بناغلی صدراعظم ازسپورت ها به‌اسپ سواری وآب بازی علاقه مندی بیشتر دارند .

بناغلی شفیق قبل ازانکه از حضور اعلیحضرت معظم همایونی بحیث صدرا عظم مؤظف گردد درکابینهٔ دکتور عبدالظاهر صدرا عظم بحیث وزیر امور خارجه ایفای وظیفه میکردند .

# مختصر سوانح سترجنرال خان‌محمد وزیر دفاع ملی



وزیر دفاغ ملی

ستر جنرال خان محمد تحصیلا تش راتا درجهٔ بکلور یا درلیسهٔ حبیبیه انجام داده و درجهٔ لیسانس را ازحربی پوهنتون بدست آورده است . وی درسال ۱۳۱۳ بحیث تولیمشر تولی سوار فرقهٔ شاهی ، شا مل وظیفه ودرسال ۱۳۱۷ برای تحصیلات عالی و مسلکی عازم خارج شد. درسال ۱۳۲۱ بدرجهٔ ارکانحرب موفقانه بوطن آمدودر همین سال بصیفت رئیس ارکان فرقهٔ قطغن مقر ر گردید .

ستر جنرال خان محمد د رسال ۱۳۲۵ رئیس ارکانحربیهٔ قوماندانی قوای مرکزو درسال ۱۳۲۷ قو ماندان لوای دوی فرقهٔ۸ قوای مرکز ودر سال ۱۳۲۹ قوماندان فرقهٔ هفت قوایمرکز بوده است . وی در سال ۱۳۳۲ بحیث قوماندان فرقهٔ غزنی و درسا ل ۱۳۳۳ ــ بحیث قوماندان فرقهٔ هرات ودرسال ۱۳۳۷ بحیث قوماندان قوای کند هار مقر ر گردید .

وزیر دفاغ در سال ۱۳۳۸ علاوه برقوماندانی قوای کندهار ،کفالت‌دارالحکومگی کندهار را نیز بعهده داشت ودر سال۱۳٤۱ بحیث وزیر دفاغ ملی عزتقرر حاصل کرد واز آن تاریخ تاحال درین پست کارمیکند .

وزیر دفاغ ملی ، درسال ۱۳٤۳ بر تبهٔ ستر جنرالی ترفیع نموده ودر دوران وظیفه داری اش در اردوی شاهی افغانستان یاخنی نشان هیواد درجه اول حضری ونشان سردار عالی نایل آمده است . ستر جنرال خان‌محمد متأهل بوده وپنج‌دختر ویك پسر دارد .

# مختصر سوانح دکتور نعمت‌الــله پژواک وزیر داخله



وزیر داخله

دکتــور پژواک در سال ۱۳۰۷ هجــر ی شمسی در شهر کابــل تولد گردیــده دورهٔ تعلیمات ابتدایی وثانوی خودرا درلیسهٔحبیبیه به‌پایان رسانید ودرسال ۱۳۲۷ شامل پوهنځی ادبیات وعلوم بشری پوهنتون کابل گردید، درسال ۱۳۳۲ ازآن پوهنځی فارغ التحصیل شدودرسال ۱۳۳۳ بحیث عضــو ریا ســت تدریسات ابتدائی وزارت معارف و درسال ۱۳۳۴ بحیث مدیر دارالمعلمین های کا بــل مقرر گردید .

دکتــور پــژواک درســال ۱۳۳۶ بــرآ ی تحصیلات عالی شامل پوهنتون کولمبیا ایالات متحدهٔ امریکا شد ودرسال ۱۳۳۷ بحیث‌مدیر لیسهٔ حبیبیه مقرر گردید .

وزیر داخله درسال ۱۳۴۱ بــرای تحصیل بحد درجه دکتورا در تعلیم وتربیه شا مل پوهنتون کولمبیا گردید ودرسال ۱۳۴۴بحیث رئیس تدریسات ثانوی وزارت معا ر ف مقرر شد .

دکتــور پــژواک در ســال ۱۳۴۷ بحیــث رئیس کلتوری و مستشار فرهنگی درسفارت کبرای افغانی مقیم مسکو ودر ۱۳۴۹ بحیث رئیس تالیف وترجمهٔ وزارت معارف مقــر ر شد . وی در سال ۱۳۵۰ بحیث والی کابــل ایفای وظیفه کرده‌است .

دکتور پژواک در چنديــن کنفرانــس و سیمینار یو نسکــو درممالك مختلف اشتراك ورزیده است .وی متأهل بوده، دوپسر ودو دختر دارد .

# مختصر سوانح بناغلی خوازک زلمی وزیر فواید عامه



وزیر فوایدعامه

بناغلی خوازک زلمی بعد از اکمال‌تعلیمات ابتدائی وتحصیلات ثانوی در حربی ښوونځی درسال ۱۳۲۲ ازحربی‌پوهنتون فارغ التحصیل شد ودر همین سال بحیث بلو کمشر ثانی‌به کفالت تولی استحکام قوای مرکز مقررگردید و تاسال ۱۳۲۵ باین وظیفه دوام داد. وزیر فوایدعامه درسال ۱۳۲۵ به هند رفته ویک ونیم سال تحصیلات عالی مسلکی را در آنکشور انجام داد. وی درسال ۱۳۲۶ در جملهٔ هیأت اداری حربی ښوونځی مقر ر گردیده وتا سال ۱۳۲۷ در همین پست انجام وظیفه میکرد.

بناغلی خوازک زلمی در سال ۱۳۲۸ بحیث قوماندان تولی غند استحکام و در سال ۱۳۳۹ بمدیریت تعلیم وتربیهٔ ریاست‌ارکان حربیه عمومی مقرر گردید.

وزیر فوایدعامه در سال ۱۳۳۴ مد یر حرکات قوماندانی عمومی قوایکار ودرسا ل ۱۳۳۶ بحیث کفیل قوماندانی یونت او ل قوایکارودرسال ۱۳۳۸ بحیث قوماندان یونت اول مقرر گردید . بناغلی خوازک زلمی د ر سال ۱۳۴۲ به صفت آمر ساختمانی میدا ن هوایی کابل وفابریکهٔ خانه سازی ودر همان سال بحیث آمر عمومی لین‌غربی‌سرک‌کندهار‌ـ هرات مقرر گردید . وزیر فوایدعامه درسال ۱۳۴۵ بحیث قوماندان عمومی قوایکار مقر ر شده وبعداً بحیث وزیر فوایدعامه ایفا ی وظیفه نموده‌است .

بناغلی خوازک زلمی باخذ نشان ستو ر درجهٔ سوم مدال وړتیا، نشان ستور در جه دوم مدال رشتین ونشان ستور درجه او ل از حضور اعلیحضرت معظم همایونی نایـل گردیده است . وی متأهل بوده ،دارای‌هفت پسر وشش دختر میباشد .

# مختصر سوانح بناغلی صباح‌الدین کشککی وزیر اطلاعات وکلتور



**وزیر اطلاعات وکلتور**

بناغلی کشککی در ۱۸ دلو ۱۳۱۲ درکابل متولد گردیده بعداز ختم تحصیلات ثانوی در لیسهٔ غازی درسال ۱۳۳۲ برای تحصیلا ت عالی به‌امریکا رفته ودرسال ۱۳۳۷ بعد از اخذ درجهٔ ماستری در ژورنالیزم بوطن‌عودت کرده‌و بحیث عضو ادارهٔ نشرات ، معاو ن اصلاح ،وکیل مدیر اصلاح ،مدیر روزنامهٔ انیس، مدیر اطلاعات رادیو افغانستان ایفای وظیفه کرده‌است .

بناغلی کشککی بحیث‌معاون آژانس‌باختر، رئیس آژانس ، آمر مؤسسی روز نامهٔ کابل تایمز، رئیس رادیوافغانستان وبالاخره بحیث صاحب امتیاز روزنامهٔ کاروان ایفا ی وظیفه کرده‌است .

بناغلی کشککی ازبدو تا سیس شعبهٔ ژورنالیزم درسال ۱۳۳۹ درپو هنخی ادبیات وعلوم بشری بحیث آمرو استاد این شعبه کار کرده ودرسال ۱۳٤٦ در پهلوی وظایفش در وزارت اطلاعات وکلتور در کدرعلمی پوهنتون شامل گردید واکنون دارای ر تبهٔ علمی پوهنمل میباشد .

# مختصر سوانح ښاغلی محمد خان جلالر وزیر مالیه



وزیر مالیه

ښاغلی جلالر در ۲۵ قوس ۱۳۱٤ در شهر اندخوی تولد یافته وتحصیلات ابتدائی وثانوی خودرا در مکاتب ابتدائی وتجارتی تکمیل نمود .

ښاغلی جلالر درسال ۱۳۳۷ از پوهنځی اقتصاد پوهنتون کابل بدرجهٔ لیسانس فارغ التحصیل گردیده ودر وزارت پلان‌شامل وظیفه گردیده وی درپست های مدیریت تجارت ومالی مدیریت عمومی توحید و انسجام وریاست مالی ایفای وظیفه نموده .

ودرمیزان ۱۳۵۰ بحیث معین مالی وزارت مالیه مقرر گردید

وزیر مالیه متأهل بوده ، چار پسر وسه دختر دارد .

# مختصر سوانح انجنیر نصرت الله ملکیار وزیر مخابرات



**وزیر مخابرات**

انجنیر نصرت الله ملکیار درسال ۱۳۲۸ از لیسهٔ حبیبیه فارغ التحصیل گردیده و از سال ۱۳۲۹تا ۱۳۳۶ تحصیلات عالی را در پوهنتون کلیفور نیای جنوبی ایالات متحدهٔ امریکا در رشته برق ومخابرات تکمیل کرده است .

ښاغلی ملکیار درجهٔ ماستری رادر رشتهٔ برق ازپو هنتون مذکور اخذ وبعداً به‌تجارب علمی در کمپنی های وستن الکتریک پسفیك تیلفون امریکا واس .اف .ازفرانسه پرداخت

وی در مرحلهٔ اول مأموریت درسال ۱۳۳۶ بحیث مدیر ورکشاپ در وزارت مخابرات شامل وظیفه گردیده ودر سال ۱۳۴۰ بحیث سر انجنیر در وزارت موصوف مقرر شد .

انجنیر ملکیار در اخیر سال ۱۳۴۰بحیث معین وزات مخابرات تعیین واین وظیفه راتاسال ۱۳۴۳ بدوش داشت . در همین سال وی به خدمت مقدس عسکری رفته‌واین دورهٔ رادر کورس ضابطان احتیاط سپری نمود.

ښاغلی ملکیار در سال ۱۳۴۶ بحیث‌والی بامیان مقرر گردید وبعداً در سال ۱۳۴۸ بحیث والی کاپیسا ایفای وظیفه کرده است.

وزیر مخابرات در دورهٔ ماموریت با خذ نشان مینه‌پال درجهٔ اول نایل شده است .

وی، متأهل بوده ، دودختر دارد .

# مختصر سوانح دیپلوم انجنیر غلام دستگیر عزیزی وزیرمعا دن وصنایع



وزیر معادن وصنایع

دیپلوم انجنیر عزیزی درسال ۱۳۰۰ ـ هجری شمسی در کابل تولد گردید و وتحصیلا تش رادر لیسهٔ حبیبیه بدر جهٔ بکلوریا رسانیده وشامل پو هنخی علوم پوهنتون کابل گردید . وی درسال ۱۳۲۷ از صنف چهارم آن پوهنځی برای تحصیل د ر رشتهٔ انجنیری عازم امریکا شد ولیسانس وماستری خودرا در رشتهٔ انجنیری ما شین ازآنکشور بدست آورد .

انجنیر عزیزی درسال ۱۳۳۲ برای تحصیلات عالی به جمهوریت اتحادی المان رفت و در سال ۱۳۳٤ به وطن مراجعت نموده و بحیث آمر پلان وپروژه در وزارت معادن و صنا یع داخل خدمت شد.

وزیر معادن وصنایع درسال ۱۳۳۷ بحیث مدیر عمومي تخنیك آن وزارت و درسال ۱۳۳۹ بحیث رئیس صنا یع مقرر گردید و درهمین سال برعلاوهٔ وظیفهٔ متذکره از امور ریاست فابریکات جنگلك نیز سر پر ستي میکرد .

انجنیر عزیزی درسال ۱۳٤۲ بحیث رئیس عمومی ترانسپورت ودر اخیر همان سا ل به صفت رئیس اداری صدارت عظمی مقر ر شد. درسال ۱۳٤۳ بناغلی عز یزی بحیث معین وزارت داخله مقرر گردیده ودر عین حال متکفل امور ریاست عمو می ترانسپورت نیز بود .

انجنیر عزیزی درسال ۱۳٤٤ بحیث کفیل وزارت فواید عامه مقرر گر دید ، وی ،متأهل بوده، یك پسر ودودختر دارد .

## مختصر سوانح دکتور عبدالوکیل وزیر زراعت وآبیاری



وزیر زراعت وآبیاری

دکتور عبدالوکیل در سال ۱۳۲۱ ازلیسهٔ غازی فارغ التحصیل گردیده وتحصیلات عالی خودرا در پوهنځی زراعت لایپور تا ۱۳۲۵ بپایان رسانیده وباخذ درجهٔ لیسانس موفق‌شد . وی پس از مراجعت بوطن از ۱۳۲۵ تا ۱۳۲۷ بصفت معلم زراعت در دارالمعلمین ایفای وظیفه نموده ودر سال ۱۳۲۷ برای تحصیلات عالی عازم انگلستان شدوپس ازاخذ دکتورا در رشتهٔ میوه جات از پوهنتون لندن درسال ۱۳۳۱ بوطن‌مراجعت نموده وبحیث رئیس زراعت وبعداً بحیث معاون زراعتی وبالاخره بحیث رئیس پروژهٔ وادی هیرمند وارغنداب ووالی آن ولایت تاسال ۱۳۴۴ اشتغال داشت .

وزیر زراعت وآبیاری درسال ۱۳۴۴ بحیث سناتور انتصابی مقرر وتاسال ۱۳۴۹ به‌این پست دوام داد . واخیراً بحیث وزیر مشاور ایفای وظیفه می نمود . دکتور عبدالوکیل متأهل بوده وهفت پسر دارد .

# مختصر سوانح دکتور عبدالواحـــد سرابی وزیر پلان



وزیرپلان

دکتور عبدالواحد سر ابی وزیـر پـلان درسال ۱۳۲۷ از لیسهٔ نجات فارغ التحصیل گردیده ودرســال ۱۳۲۸ بصفت تـر جمان درسی وستاژیر در مکتب تجار تی ایفـا ی وظیفه کرده‌است .

داکتر سرابی درسال ۱۳۳۳ از پوهنځی علوم اقتصادی وتجارتی ویانا مرکز اطریش فارغ التحصیل شد ودر عین زمان به‌تحصیل در رشتهٔ تعلیم وتربیه برای مکاتب مسلکـی اقتصادی پرداخته ودرسال ۱۳۳۵ باخذ درجه دوکتوری نایل شد .

وزیر پلان دیپلوم تعلیم وتربیه اقتصادی رانیز درسال ۱۳۳٦ اخذ ودر همین سال به صفت عضو تدریسی پـوهنتون کابـل د ر پوهنځی اقتصاد شامل وظیفه گردید .

وی درسال ۱۳۳۹ بحیث رئیس پوهنځی اقتصاد واستاد پوهنځـی ودرسال ۱۳٤۲ با حفظ مقام استادی درپوهنځی اقتصاد، بحیث معاون علمی پوهنتون کابل ایفای و ظیفـــه کرده است .

دکتور سرابی از جدی ۱۳٤٤ تا عقـر ب ۱۳٤٦ نیز سمت رئیس واستاد پو هنځـی اقتصاد رابعهده داشت .وی در عقرب سـال ۱۳٤٦ بحیث وزیر مشاور ، ازقوس ۱۳٤۸ بحیث وزیر پلان اشتغـال داشتـه است . دکتور سرابی ، متاهل بوده ،یک‌دختر و یک پسر دارد .

# مختصر سوانح پوهاند دکتور محمد یاسین عظیم وزیر معارف



**وزیر معارف**

پوهاند عظیم تحصیلات ابتدائی و ثانوی خویش رادرسال ۱۳۲۴ در لیسهٔ حبیبیه به پایهٔ اکمال رسانده واز پوهنځی ساینس در سال ۱۳۲۹ لیسانس حاصل کرد .

موصوف ماستری خویش رادر رشتهٔ زولوژی درسال ۱۳۳۲ از پو هنتون مونتانا اضلاع متحده امریکا بدست آورد .

دکتور عظیم دکتور ای خویش را در رشتهٔ زولوژی «فزیولوژی» در سال ۱۳۳۹ از پوهنتون وایو منگ امریکا بدست آورد .

از سال ۱۳۲۹ الی ۱۳۳۲ بحیث اسیستانت درپوهنځی علوم . درسال ۱۳۳۲ بحیث استاد مقرر گردیده ودرسال ۱۳۳۴ معاون علمی پوهنځی ساینس مقرر شد ودرسال ۱۳۳۹ بدرجهٔ علمی پوهنوال درپوهنځی ساینس شامل گردیده ودرسال ۱۳۴۰ بحیث کفیل ریاست پوهنځی انجنیری وزراعت تعیین شد.

موصوف درسال ۱۳۴۰ دررشتهٔ فزیولوژی وجیولوژی کرسی پوهاند رادرپوهنتون کابل احراز نمود .

پوهاند عظیم درسال ۱۳۴۲ بحیث معاو ن مؤسسه تعلیم وتربیه ودرسال ۱۳۴۴ بحیث رئیس آن مؤسسه مقرر گردیده‌اند .

درسال ۱۳۴۷ بحیث معاون پوهنتون کابل تعیین شدند .

ایشان درسال ۱۳۴۸ بحیث عضو علمی مؤسسه تعلیم وتربیه مقرر شدند .

وی درسال ۱۳۵۰ بحیث معین اول وزارت معارف مقرر گردیده است .

ازماه ثور ۱۳۵۱ بحیث وکیل وزارت معارف مقرر وعلاوه بران ازماه ثور الی اخیر ماه سرطان بحیث رئیس سرپرست پو هنتو ن کابل ازآن مؤسسه وارسی نموده‌اند .

موصوف در دوران ماموریت علاوه ازمکافات نقدی باخذنشان مینه پال، مدال پوهنه وتقدیر برنامه درجه «دوم» نائل گردیده‌اند .

پوهاند اعظیم علاوه برساله های ماستری ودکتوری ، بیولوژی صنف نهم راتالیف نموده اند .

ایشان به‌لسان های پښتو، دري وانگلیسی تکلم مینمایند ومتاهل بوده که دارای «پنج طفل» سه‌دختر ودوپسر میباشند .

درسال ۱۹۶۶ به‌سیمینار اداره مؤسسات تعلیمی وامور محصلین در ایالت مینیسوتای اضلاغ متحده امریکا .

درسال ۱۹۶۸ به‌کنفرانس لیدر ها ی جوانان آسیائی درسیلون .

درسال ۱۹۶۹ به سیمینار آمرین مؤسسات تعلیمات عالی دربیروت ، لبنان .

درسال ۱۹۶۹ به‌سیمینار ملتای دسپلنری ریسرچ یونسکو درهند .

درسال ۱۹۷۰ بحیث نماینده افغانستان درپروگرام ایزنهاور اضلاغ متحده امریکا برای هشت ماه .

درخزان سال ۱۳۵۱ بحیث رئیس هیئت افغانی در هفدهمین کنفرانس عمومی یونسکو در پاریس اشتراک نموده‌اند .

# دهلمند داوبو ترون اوپه دې هکله ويناوې

ښاغلي هويدا دښاغلي محمد موسی‌شفيق په بلنه د حوت ۲۱ دغرمی تـه مخکی په پولسس نيمو بجو ديو هيأت پـه مشری کابل ته‌راغی .

صدرا عظم ښاغلي محمد موسی شفيـــق الوتکي ته‌نژدی دښاغلي هو يدا هرکلي‌وکړ. پدغه وخت کښي‌دسلطنتي دربار وزير ښاغلي علي محمد ،دملي دفاع دکورنيو چاروادکرنی اواوبولگولو وزيران ،دکابل والي، سرپرست ښاروال او دايران لوی سفير هم حاضر وو. د دواړو هيوادو صدرا عظمانو په هوايی ډگر کی ورروسته له‌هغه چـه موزيك دايـران او افغانستان ملي سرود ونه‌وغږول‌دتشر يفاتي گارد داحترام مراتب ومنل اوهغه يی وکوت بيايو شمير ماشومانو دايران صدراعظم تـه دگلو گيډی ورکړی . دغه رازپه هوايي ميدان کښي دحکومت غړی دلوړی رتبی عسکری او ملکی مامورين او دکور ديپلو ماتيکو ځينـی مشران دايران ښاغلي‌صدراعظم‌ته ورويپژندل شول .

**دښاغلي صدراعظم سره کتنه :**

دايران صدراعظم دحوت په يوو يشتمـه نيټه له‌غرمی ورروسته په څلورو بجو دصدارت عظمی په‌ماڼی کی دښاغلي شفيق ســره وکتل .

دايران صد راعظم دغرمی نه وروسته په دری بجو اود يرشو دقيقوداعليحضرت شهيد سعيد مزار ته‌لاړ اوددغل کولو نه‌وروستـه يی‌دگلو گيډی کيښوده .

دافغانيستـان او ايران ترمينځ د هيلمنـد له‌سند څخه داوبو دموضوع په‌باب ورو ستی خبری دباندنيو چارو په وزارت کی وشوی ، وشوی .

دايران صدرا عظم ښاغلي امير عبا سس هويدا او صدراعظم ښاغلي محمد موسی‌شفيق پداسی حلل کی چه ددواړو خواو هياتو نه ورســره وو دحـوت په ۲۱ نيټی تر غرمـی وروسته په څلورو بجو او ديرشو دقيقو د باندنيو چارو په وزارت کی خبری وکـړی . پدغو خبرو کی‌د دواړو حکو متونو رئيسانو دهغو خبرو دجريان په‌باب چه تراوسه‌پوری دهيلمند دسيند داوبو په موضوع کی‌پـه ورروستيو اوو مياشتو کی شوی دی رضا يت څر گندکړ .

دتړون دکيدو اود هغه سره ددوو ضميمه پروتو کولونودلاسس ليك دپاره څپل تيار ی وښود .

لکه چه دباندنيو چارو دوزارت يوی منبع وويل‌دغه‌خبری دهيلمنددسيند نه‌داوبو په‌باب دييه‌تړون اودهغه ددووضميمه پروتو کولونه په باره کـی چه يويی داوبو دکميسا رانـو اود هغو دوظيفو اوبل‌يی دتړون دتفسير او تطبيق په‌برخه کی داختلاف دپيدا کيدو پـه صورت کي دحکميت په‌باب ديوی موا فقـی په‌باره کی وروستی مرحله او ورو ستـی خبری اتری دی .

په دغو خبرو کی‌دايران له‌پلوه د غــو کسانو برخه درلود : دصدراعظم نائب ښاغلي مهندس صفی اصفيا ،په‌کابل کی‌دايران لوی سفير ښاغلي جهانگير تفضلي ، دايـران د باندنيو چارو دوزارت سياسی معين ښا غلي

منوچهر فرتاش ،دایران‌دباندنیو چارودوزارت دپنځمی اداری رئیس حسین شهید زاده ، دایران دصدراعظم دمخصوص دفترلوی مدیر ښاغلی محمدصفا ، دایران دباندنیو چارو دوزارت دسیاسی مرستیال ددفتر رئیس‌ښاغلی هوشنګ عامری او په کابل کی دایران دلوی سفارت وزیر مختار مستشار ښاغلی منصور مشکین پوش .

دافغانستان له‌خوا دغو کسانو پکی برخه درلوده : دمالیی وزیر ښاغلی محمدخان جلالر ، دکرنی او اوبولګولو وزیر داکتر عبدالوکیل ، دپلان وزیر داکتر عبدالواحد سرابی ، دهیلمند اوارغنداب دناوی دپرمختیا لوی رئیس انجنیر میرمحمد اکبر رضا، په ډیلی کی افغانی لوی سفیر داکتر عبدالحکیم طبیبی ، په‌پاریس کی منتخب لوی سفیر داکتر روان فرهادی ، دباندنیو چارو دوزارت سیاسی لوی مدیر داکتر عبدالواحد کریم . دکرنی او اوبو لګولو دوزارت معین انجنیر جمعه محمد محمدی ، دباندنیو چارو د وزارت دمعاهداتو اوحقوقو مرستیال داکتر‌عبدالفرید رشید ، دملګرو ملتو په مؤسسه کی دافغانی دایمی نمایندګی لومړی سکرتر ښاغلی حبیب‌الله کرزی ، اود باندنیو چارو دوزارت دسیاسی روابطو په مدیریت کی دمنځنی ختیځ د چارو متصدی ښاغلی محمد یوسف صمد .

**معظم ټولواک دایران صدراعظم شاهانه حضور ته‌ومانه :**

همدا شانی دشپی په‌اتو بجو او اته شلویښتو دقیقو دحوت په ۲۱ نیټه دایران صدراعظم ښاغلی امیرعباس هویدادهمایونی‌ـ معظم اعلیحضرت په حضور شرفیاب شو او دشپی ډوډی یی‌په سلطنتی میزو خوړه .

ددغی شرفیابی په وخت کی صدرا عظم ښاغلی محمدموسی شفیق ، دولسی جرګی ـ رئیس ، پوهنوال داکتر محمدعمر وردك ،دـ مشرانو دجرګی رئیس سناتور عبدالهادی داوی ، قاضی‌القضات پوهاند داکتر‌عبدالحکیم ضایی ،دسلطنتی درباروزیرښاغلی علی‌محمد، دمالیی ، کرنی اوپلان وزیران ، دباندنیوچارو دوزارت سیاسی لوی مدیر ، دهیلمند والی اود هیلمند دناوی دپرمختیالوی رئیس او هیلمند دسیند شخه داوبو دموضوع د خبرو دهیأت یوشمیر غړی حاضر وو .

دغه راز ددغی شرفیابی په‌وخت کی د ایران دصدرا عظم نایب ښاغلی صفی اصفیا دایران دباندنیو چارو دوزارت سیاسی معین ښاغلی فرتاش په‌کابل کی دایران لوی سفیر اودښاغلی هویدا یوشمیر ور سره غړی حاضر وو.

**دهلمند دسیند داوبوتړون لاسلیك شو :**

دافغانستان صدراعظم ښاغلی محمدموسی شفیق اودایران صدراعظم ښاغلی امیرعباس هویدا په‌دولسو بجواودیرشو دقیقو ،د۱۳۵۱ کال دحوت په‌دوه ویشتمه ، دسه شنبی په ورځ دهیلمند دسیند شخه داوبو تړون اودهغه دوه‌پروتوکولو نه دباندنیو چارو دوزارت دستور په‌مانی کی لاس لیك کړل . پدغه وخت کی دافغانستان او ایران دواړو خواو هیئتونه حاضروو .

دایران صدراعظم ښاغلی امیر عباس هویدا دورځی په ۱۲ ـ بجوله خپلو غړو سره دستور دمانی کورنی تالارته ور غی . پدغه وخت کی له دواړو خواونه دتړون د خبرو هیئتونه حاضروو .

د افغانستان او ایران د دواړو هیوادو صدراعظمانو خپلی اعتبار نامی تبادله کړی .

په پښتو او دری ژبویی ددواړو خواو د تړون او ضمیمه دوه ؤ پروتوکولونو متنونو لاسلیك کړل .

دهیلمند له‌سیند شخه داوبو په‌باب د افغانستان اوایران ترمنځ دتړون‌په‌اړخ کی دوه پروتوکولونه هم دحوت په۲۲ ـ نیټی لاسلیك شول .

لومړی پروتوکول په‌دواړو خواو وکی کمیسارانو وظیفه اودوهم پروتوکول دلانجی دپیدا کیدو په حالت کی دحکمیت مسئله تنظیموی .

لومړی پروتوکول ۱۳ مادی او دوهم پروتوکول نهه مادی لری . اوپه اصل تړون کی ۱۲ ـ مادی شاملی دی . دغه تړون په دهغه‌له ضمایمو سره ډیر ژر شوری ته وړاندی شی .

دتړون دلاس لیك په وخت کی دافغانی هیأت یوولس تنه غړی او دایرانی هیأت اووه تنه غړی حاضروو .

## دښاغلی صدراعظم رادیو یی وینا

**بسم الله الرحمن الرحیم :**

گرانو خویندو ! گرانو ورونو !

راته ښکاری هغه غوټه په سپړیدو ده ،د کومی په باب چه یووخت ماسره داترهه و چه دیوی کاملی پیړی داوښتو له کبله د هغی په خـلا صون دشك تیا ره پریو تیده .

په اوبو باندی دبنیادم ژوندون ولاړ دی او ځکه خوداوبو نه څوك تیریدلی نه شی که څه هم په دی تیریدو دبل چاژوندون سمسوریږی.

هیلمند ددی وطن په اسمان باندی دخورو وریځو بچی دی دابچی دپښتون خوا په هسکو او تورو غرونو کی زوکیږی اود همدی و طن په لمن کی خاوروته سپارل کیږی .

دی په خپله اوږده لار باندی په مست مزل کښی کله کله زمونږ دورور اوگاونډی هیواد خاوری ته دومره نژدی کیږی چه په یو نیـم ځای کښی خودبړ یدپوله بیدود همده په سینه کښی زغلی اوهمدغه وجه ده دایران دسیستان ولایت اود هغه ځای خلکو تل دهلمند نه اوبه ښښلی او اخیستلی دی . مونږ چیری هم په دی خبره کافی غور فکر نه دی کړی چـــه د هلمند پوری غاړی څومره اوبه ځان پلوزاښکلی دی بلکه مونږ دهلمند دلانجی په دی او ږد ه پیړی کښی خپل ټول وخت او فکردی خبری ته وقف کړی دی چه ددی اوبو مقداراو اندازه باید څومره وی .

اوس هغه وخت راغلی دی چه دگاونډ په دود مونږ دواړه یعنی افغانستا ن او ایرا ن حقیقت او حقوق سره وتلو اوڅومره اوبه چه اخلی له هغو اوبو سره انډول کړی شی چه بایدیی واخلی دپاره نه یوازی دورروی نـه وتلی خبره نده بلکه داکار لکه چه پښتا نه وایی وروری به کووحساب تر منځه د وروری ساتلو دپاره ضروری دی .

پدی لنډ وخت کښی زه دهلمند د سیند نه داوبو په باب اوږدی خبری نه کوم .

دغسی خبری دمکما هون دیادو نی راهیسی ددی اوسنیو کلونو تر پرله پسی خبرو اترو پوری په یووړوکی کتاب کښی همدا نـن د حکومت له خوا نشر شوی دی .زه چه کله د افغانستان شوری ته داساسی قانون په حکـم ورشم نو هلته به ددی وروستنی مر حلی د خبرو اترو یولنډیز وړاندی کړم.

په دی مرحله اوددی نه په مخکنو مراحلو کښی داسی خبری شتـه چـه دوطـن او د افغا نستان داولس مصالح مونږ ته دشوری دپټی غونډی نه بهر دهغو دبیانو لو اجـاز ه نه را کوی .

البته دشوری غړی بیا کولی شی چه ددغو خبرو دخپرولو په باب دخپل صلا حیت له مخه یوه داسی لارغوره کړی چه د دوی په فکـر دافغا نستان ښیگړی څنگه چه ښایی هغسی خوندی کوی .

دافغا نستان حکومتو نو دتیروسلو کلونو په دغه ټوله موده کښی دښه گاونډ سره چه کوم حسن نیت ښایی دهغه له مخه همیشــه داکوښښ کړی دی چه دهلمند دسیند تــه داوبو دمسألی دپاره دحل یوه مناسبه لا ره وموندل شی. داچه مناسب حل کوم ته وایــه شی ددی خبری دپاره دادوه اساسی معیارونه دقضاوت بنیاد ساتل شوی دی : اول ـداچه دحل لاره دی دجغرافیی او طبیعت له حقایقو سره پردی نه وی اوبل داچه دافغا نستا ن خلك په کی دخپل وطن ښیگڼی اوپه تیره بیا دهلمند په کوزه خواکـی دپرتو وطنوا لــو ضرورتونه خوندی شوی وبولی .

هغه وخت چه دلسهـا وو کلـو نـو د لوړو ژورونه پس بالاخره دبیطرفه کمیسیون په نامه پیژندل شوی . هیات دغسی حل بنیاد وموند اوهغه یی مونږ او ایران ته په لا سس راکړ نورنوله مونږ افغانانو سره په دغه بنیاد باندی ددی غوټی دسپړونو په برخـه کښـی څه تردد پاتی نه شو اودگاونډ یتوب سره چه کوم حسن نیت ښایی دهغی دهلوځلولو په اراده مونږ ددغه بنیاد دمنلو په لاره کی یوگام پورته کړ اوددغه مونډ دعملی کولو دپاره مودښه نیت نه یوڅك اوځر گند تجویز دایران ورور دولت ته ولیږه .

اوس مونږ پهدی خوشاله یوچه دهیلمند لهپوری غاړی پهدی حسن نیت دپو هیدلواو دورسره تجویز دمنلو پیغام را الوتی دی .

کوم متون چه همدا اوس مونږ سره تیاریږی هغه په عباراتو او کلماتو باند ی دهغه حسن نیت ترجمه کوی چهمونږ ور ته اشارهوکړه اساسی سنددهغهتړون مسوده ده چه داوبو یومقداردایران دپاره پهګو ته کوی او ددغو اوبو داخستلولاری چاری بیانوی . ورسره دوه نورسند ونه ددواړو خواوو د کمیسارانو وظیفه اود جګړی را پورته کیدو پهوخت دحکمیت مسئله پهنظم کیراولی .

مونږ په دی عقیده لروچه کهچیری ددغو متونو پهلاس لیك بریالی شوو ، نو ددی کشالی سیوری بهدهمیشــ دپاره د دواړ و ولسونو دروابطو دآسمان نهلری شی .

پهدغه ټوله موده کښی دافغا نستـا ن حکو متونو پهدی ټکی زور اچولی دی چه دیو داسی ډولجوړی نه ځایوساتی چهجامعه نهوی اوپه واقعیاتو باندی ولاړه نهوی او په دی ډول پهدغه باب دیوی داسی بلی کشالی تخم ونه شیندی چه د دواړو ملتونو سلنور کلونه بیاد هغی دحل کولو پــه کار کښــی راباندی تیر شی .

داچه نن مونږ یوی روغی تهنژدی کیږ ی شو او داچهمونږ یوه پیریداوبو غوندیوی نازکی مسألی پهباب یوهکشاله پخپل منځ کیلرله اودی کشالی مونږ لاپسی سختـــی شخړی تهرا نښکلو دغه دواړهخبری پهرښتیا چه دافغان او ایران دواړو ولسونو پهدرایت اوحوصله باندی شاهدی وایی .

ددی وروستنی مرحلی پهګرده موده کښی چه زه دهلمند دسندنه داوبو له مسألی سره یرله پسی او مستقیم تماس لرم زما دزړه سترګی ددی مسألی نهاخواته اوښتی پاتــی شوی دی مونږ دهلمند دکوزی خواد وادی له درکهدوطن اوولس پهباب داسی واجبات لرو چهنه ښاییلهدی نهزیات دفکر پهځنډه کښی پاتی شی مونږ ټولو ته معلومه دهچه همد ی هلمند په همدی سیمه کښی دوری دو ر ی غځیدلی مد نیتونه سمسور کړی او پا للــی دی . کهمونږ دالیونی سیند دخپلو ځوانانــو پهمت اوپوهه پهلارهسم کړونو دوطن پهدغه ګرانه برخه کی بهددغه بابرکتی خاوری تـه داسی څه لاس تهراشی چه زمونږ خپـــل احتیاج خوبه پوره پوره کړی بلکه دنور و داړتیا مخاوسترګی بههملهلری اوله نژدی نه مونږ تهراواړوی .

نن چه دنیاپه څومره ګړ ندیتوب دصنعت پهلار کښی پرمخ درو می پههماغه اندازه یی دزمکی وفیض ته اړهډیریږی .کوم حاصل چه نیمروز او خواوشا علاقه ورکولی شی د هغه لهکبله مونږ بایدنیمروز د شنو زرو سیمــو وبولو داسی زرچه بازار یی پههیڅ زمان او مکان کیسرښت نهلری مونږ باید داهیر ه نهکړو چه خلك دتوری او سپینی طلا پهبدل کښی چهڅه ګټی هغه دشنی طلا په لار کښی ښنندی.

دا ددی سیمی داولس یو سپیڅلی خوی دی چهدخپل هیواد دښیګړو پهباب دافـرا ط تر اندازی اندیښنه کـړی زه دافغانستـا ن بزګرو ته، دافغانستان کسب کارو ته چــه د خدای نازولی ،پیغمبر درب دوستان بللیدی، ځوانانو اومحصلانو ته، علماؤ اواستادانو ته، لیکوالو اوطبعاً دشــوری غړو تــه دا حــق ورکوم چه دګردو وطنوالو پهجمله کښــی د مملکت دښیګړی پهباب دشوی دپاڼی پهشان ورپیږی .پهدی زپیدو کښی دوطن پرستی ، تقدس په ټوپونو دی . دادحکومتونو وظیفه دهچه دخلکو لهدغو اندیښنو نهدملی ښیګړ و په سمون دچارو دشرو ع کولو او پای تــه رسولو الهام واخلی .

که چیری مونږ سرچپه خیال وکړو اود اولس اندیښنی دکارونه شروغ کولو حکــم وګڼو اوبیادغه اندیښنی د کارپه کولو کــی دتردد تومنه وبولونو بیشکه بهداد اولس په اراده باندی زمونږ دنه پوهیدو اثبات ویدی سره داهم دهچه جوخت پهدغسی بار یکــو وختونو کښی حکو متونه دخپل اولس اعتماد اوملاتړ تهډیر زیات ضرورت لری . مونــږ یواځی او یواځی د افغان دنجیب اوبیــداره اولسددغسیباور اوملاتړپهقوت پهداړهزړهدخپلی پوهی مطابق‌او دفکراواستدلال پهوسیلهدخپل ضمیر پهلار ښودنه او د خپل مسؤلیت او د هیواد دخدمتګاری دویاړلی امانت دبار دروند والی تهپه پاملرنه دافغانستان ملی ښیګړ ی خوندی کولی شو .

زه دافغانستان داولس په فطری پوههاو

زیر کتیا پوخ یقین اوعقیده لرم. زه‌نن‌یوځل بیاپه‌دغه پوهه اوزیرکتیا خپل حساب بنـا کوم اوتکیه ورته لګوم. ځومره چه‌په مونـږ کښی دسنجش طاقت ؤ اوشته دخپل هیواد دښیګړو دخوندی کولو په‌لار کښی موپه ښه راوستی او راولو به‌یی ددی ګټی اوښیګړی قطعی تشخیص دافغانستان دشوری لاس ته دی‌چه دافغانستان داولس دارادی څرګندویه ده اوبیا دافغا نستان‌دپاچا او اولوالامر لاس ته سپارل شوی دی چه دافغانستان د ملـی حاکمیت ښکار ندوی دی. که دوی زمو نـږ کارسم وګڼی زه‌او ملګری به‌مـی دسعا د ت احساس وکړو چه دهیواد دپاره موخد مت کړی دی اوکه زمونږ په‌سنجش کښی خطا وموهی نومونږ به دسعادت احساس وکړ و چه ددولت اساسی قانون دیو حکو مت خطا پری‌نه ښوده چه دافغا نستان دموجـوده او راتلونکو نسلونو په‌اوږو بارشی .

لوی او لاشریك خدای دی چه کارو نـه او شیان تول دده په‌لاس دی زمو نږ پـه زیار برکت کیږدی‌او هیواد پاچا او اولس دی له‌هری بلاوساتی .

**دهیلمند (هیرمند) دسیند د اوبو په باره‌کی دافغانستان اوایران ترمنځ تړون :**

دافغا نستان او ایران دولتونو د هیلمند(هیرمند) دسیند داوبو پـه‌باره کښی دتـل دپاره داختلاف دتولو اسبابو دلری کولو په‌هیله اود خپلی ښی وروروالی او ګاونډیتوب او ښو بین المللی روابطو دساتنی له کبله‌اراده وکړه چه‌په خپل منځ کښی یو تړون وکاندی او خپل واکمن نما یندګان یی پـه‌لاندی ډول وټاکل :

دافغا نستان لخوا : محمد موسی شفیق دافغا نستان صدراعظم

دایران له خوا : امیر عباس هویدا دایران نخست وز یـر

دواړو نمایندګانو خپل باور لیکونه یووبل ته‌وښودل اوهغه یی صحیح او باوری وبلل او په لاندنیو موادو یی موافقه وکړه :

**لومړی ماده** : په‌دی تړون کښی د غـه‌راغلی اصلاحات داسی معناوی لری :

الف ـ ۱۱ دمرغومی ـ یازده جدی(۱۱دی)دجنوری لومړی نیټی .
۱۲ دسلو اغی ـ دوازدهٔدلو (۱۲ بهمن)دفبروری لومړی نیټی .
۱۰ دکب ـ ۱۰ حوت (۱۰ـاسفند) دمارچ‌لومړی نیټی .
۱۲ دوری ـ دوازدهٔ حمل (۱۲ فروردین)داپریل لومړی نیټی .
۱۱ دغویی ـ یازده ثور(یازدهٔ اردیبهشت)دمی لومړی نیټی .
۱۱ دغبرګولی ـ یازدهٔجوزا (۱۱ خرداد)دجون لومړی نیټی .
۱۰ دچنګاښ ـ ۱۰سرطان (۱۰تیـر) دجولای لومړی نیټی .
۱۰ دزمـری ـ ده اسـد (۱۰مـرداد) داګست لومړی نیټی .
۱۰ دوږی‌ـ ده سنبله (۱۰ شهر یور )دسپټمبر لومړی نیټی .
۹ دتلی‌ـ نه میزان (نه مهر) داکتو بـرلومړی نیټی .
۱۰ دلړم ـ ده‌عقرب (ده آبان) دنوا مبـرلومړی نیټی .
۱۰ دلینـدی ـ ده قـوسـس (ده آذر) دډسمبر لومړی نیټی سره سمون خوری .

په‌کبیسه کلو کښی دیوی ورځی توپیر دلمریز هجری کلیز له مخه شمیر ل کیږ ی .

یو (داوبو کال) هغه موده ده‌چه داکتو بردلومړی نیټی څخه شروع کیږی اود ورپسی کال دسپټمبر په‌پای کښی سرته‌رسیږی .

ج ـ یو «داوبو نورمال کال» هغه کال دی‌چه داکتوبر دلومړی نیټی نه د ورپسی کال دسپټمبر ترپایه پوری داوبو ګرد بهیـر دد هراودد اوبو پیژندنی په‌دستګاه کښی چه دکجکی بندته‌داوبو دننوتلو له‌ځایه‌بر دهلمند(هیرمند) په‌سیند بانـدی ولاړه ده ځلـو ر میلیونه پنځه سوه نوی ز ره ایکر فیټـــه«۴۵۹۰۰۰۰ ـ ایکر فیټ» «۵۶۶۱ر۷۱۵ ـ میلیونه مکعب‌متره» اندازه اوشمیرل شوی‌دی.

دنورمال کال دمیاشتنی بهیر اندازه پــه لومړی گنه پروتو کول کښې چه ددی تړون ضمیمه ده ذکر شوی ده .

د ــ ددهراود داوبو پیژندلو دستگاه تشس دبهیر د اندازی معلومو لو په توگه دا سې چه دابهیر دیو نورمال کال بهیر ښیی کــه پیژندل شوی ده .

**دوهمه ماده** : دهغو گردو اویواندازه چه دهلمند «هیر مند» څخه داوبو په‌نور مال‌کال

یاداوبو په مافــوق نــورمال کال کښــی د افغا نستان له خواو ایران تــه ور خوشــی کیږی داوبو په ۲۲ ـ مکعبو متــرو منځنــی بهیر پوری په ثانیه کښی چه «دهلمند ددلتا دکمیسیــون» د ۱۹۵۱ ـ کال دفبــر ور ی د ۲۸ ـ نیټی دراپور دلسمی گڼی دجدو ل سره سم دهغه میاشتنی ویشس مطابق چــه ددی تړون ددریمی مادی په دوهم ستون * *کښی ذکر شوی دی اواضافه پری بانــدی د ٤ ـ مترو مکعبو منځنی جریان په ثانیــه کی چه متناسب دهغه میاشتنی جریانه سر ه چه ددی معاهدی ددریمی مادی دجدول په‌دوهم ستون کښی راغلی اودجدول په دریم‌ستو ن کښی ښودل شوی دی اودافغا نستان له‌خوا دښه نیت او ورور گلوی دروابطو په‌توگــه ایران ته‌ور خوشی کیږی . منحصره‌ده .

**دریمه ماده :**

الف ــ داوبو نورمالو کلــواویا ما فوقــه کلو په‌میاشتو کښی دهلمند«هیرمند» دسینده څخه دایران حقابه چه ددی تړون په دوهمه ماده کښی تشریح اوټاکل شوی ده دلاندنی جدول د څلورم ستو ن سره سم دهلمنــد (هیرمند) دسیند له بستره څخه پــه لاند ی ښودل شویو ځایو کښی دافغا نستان له‌خوا ایران ته‌ورخوشی کیږی .

| | ـ۱ـ<br>په‌مکعب مترو باندی د ۲۲ مکعب متر میاشت فــی ثانیه پــه اساس داوبو دمنځنی‌بهیر ویش «دهلمند ددلتا کمیسیون» | ـ۲ـ<br>په مکعب مترو بانــدی د٤ـ مترو مکعب فی‌ثانیه په‌اساس داوبو منځنی بهیــر «ښــــه نیــــت» | ـ۳ـ<br>په‌مکعب مترو ددی جدول دگردد دوهم او دریــم ستون یعنی د۲٦ مکعب مترو دمنځنی بهیرویشس |
|---|---|---|---|
| اکتو بر | ٤ر۲۳ | ٠ر۷۷ | ٥ر٠٠ |
| نوا مبر | ١٠ر۷٥ | ١ر٩۷ | ١۲ر۷۲ |
| دسمبر | ١٩ر٤٨ | ۳ر٥٦ | ۲۳ر٠٤ |
| جنو ری | ۲٩ر۳٥ | ٥ر۳۲ | ۳٤ر٦۷ |
| فبروری | ٦٦ر١۲ | ١۲ر٠٤ | ۷٨ر١٦ |
| ما رچ | ٦١ر٩٠ | ١١ر۲۳ | ۷۳ر١۳ |
| اپر یل | ۲٦ر۳٠ | ٤ر٨١ | ۳١ر١١ |
| مــــی | ۷ر٦٤ | ١ر۳٩ | ٩ر٠۳ |
| جــو ن | ١٦ر۷١ | ۳ر٠۲ | ١٩ر۷۳ |
| جو لای | ١١ر٦١ | ۲ر١١ | ١۳ر۷۲ |
| ا گست | ۷ر٩۳ | ١ر٤٤ | ٩ر۳۷ |
| سپتمبر | ١ر٩٨ | ٠ر۳٤ | ۲ر۳۲ |

دور خوشی کولو ځایونه دغه‌دی :

١ ــ په هغه ځای کښی چه دسرحدکربښه‌دسیستان رود پری کوی .

۲ ــ په‌نورو هغو دوو‌ځایو کښی چــــه‌ددواړو دکمیسارانــو له خــوا د دی تــړون ترنافذ کیدو وروسته به‌په درو میاشتوکښی‌دننه د٥١ـ او ٥۲ سرحدی پایوترمنځ په‌هغو ځایو کښــی چه دســر حد کربښــه د هلمند«هیرمند» دسیند په‌تل کښی وی او فاصلــه اوسمت یی ددغو سرحدی پایو څخه تثبیت‌شی ټاکل کیږی .

ددغو دوو ځایــو ټاکل ددواړو حکومتــو «دولتو» تر تصویب وروسته نافذ شمیــر ل کیږی .

ب ـ دواړی خواوی به‌په هغو ځایوکښی چه ددی مادی دالف په‌برخه کښی یی ذکــر شوی دی داسی گــډ اومنــاسب تاسیسا ت جوړوی اوپه دی تاسیساتو کښی به داســی لازمه آلات نصبوی چه دهغو شرایط ددواړو هیوادو له خوامنل شوی وی چه‌دهغو ټا کل شوو او بو اندازه د دی تړون داحکا مــو سره سم اندازه اوخوشی کړی شی .

**څلورمه ماده :** په‌هغو کلونو کښی چــه داقلیمی پیښوله کبله داوبو بهیر داوبـــو دنور مال څخه لږوی اود دهــراود داوبـــو پیژندنی د دستګاه داندازی اخستلو ار قام دتربحث لاندی میاشتی څخه په‌مخکنو میاشتو پوری مربوط بهیر داوبو دنــور مال کال د مشابهو میاشتو په‌نسبت په‌کم مقــدار کښی وښیئی ددریمی مادی دجدول په څلورم‌ستون کښی مندرج ارقام په‌هغه تناسب چه‌دهمدغه کال دمخکنو میاشتو داوبو واقعی بهیریـــی «په‌دی صورت کی دمخکنی مارچ جریان تــر دبحث لا نــدی میاشتی پــوری » دیو او بو نور مال کال دمشابهو میاشتو سره لږی د همدغه داوبو کال دراتلو نکو میاشتو دپاره تعدیلیږی او تعدیل شوی اندازه د دریمــی مادی پــه مندرجــو ځایــو کښی ایــران تــه ورخوشی کیږی .

که چیری ددهراود داوبــو دپیــژ ندنــی دستګاه په‌تر بحث لاندی میاشتــی پس د راتلونکو میاشتو څخه په‌یوه میاشت کښی د نور مال کال دمشابهی میاشتی برابر ی یا زیاتــی اوبه وښئیی نو تربحث لاندی میاشتی اوبه ددریمی مادی د جدول د څلورم ستون سره‌سم ورخوشی کیږی .

**پنځمه ماده :** افغانستان موافقت لری چه داسی اقــدام ونکــړی چــه ایــر ان دهلمند (هیرمند) له‌سینده دهغــی حقابی څخه چــه ددی معاهدی ددوهمی د ریمی او څلور مــی مادی سره سمه ټاکلی او محدوده شوی ده بعضاً یاکلا محروم کړی .

افغا نستان دخپلو ټولو حقوقو په ساتنه دهلمند «هیرمند» دسیند له پاتی اوبو څخه هر ډول‌چه وغواړی استفــاده کــوی او پــه مصرف یی رسوی .

ایران هیڅ ډول ادعا دهلمند «هیرمند» په اوبو کښی‌دهغی اندازی نه زیات چــه دد ی تړون مطابق تثبیت شوی ده نلری حتی تردی چه‌که داوبو نوره اندازه دهلمند «هیرمند»په کوزنی دلتا کښی میسره هم‌وی اودیاران تر استفادی لاندی هم‌راتلای شی .

**شپږمه ماده :** افغانستان به داسی اقدام ونه کړی چه‌دایران حقابه دکرنــی د پــا ره گرد سره‌له ښیګړی ووځی اویاله صنایعــو څخه دراوتلو اوبو په کیمیایی موادو باند ی تر داسی حده ولړلی شی‌چه په وروستنــی معمولو فنی لارو چارو باندی دسمون وړ نه وی او استعمال یی دمدنی اړتیاؤ دپاره‌ناممکن او ضرر ناکشی .

**اوومه ماده :** هر ډول گــډ ودانــی چــه جوړښت یی دسیند دتل دلاټینګیدو دپاره په هغو ځایو کښی چه دسر حد کرښه دهلمند «هیرمند» دسیند په‌تــل کښــی وی لازمــی ولیدلی شی‌بی له‌هغه چه شرایط اومشخصات یی ددواړو له‌خوا ومنل شی جوړیدای شی .

**اتمه‌ماده :** دواړه خواوی به‌یویو کمیسار اویویو دکمیسار مر ستیال د خپلو اتبا عو څخه ټاکی چه ددی تړون داحکا مو په اجرا کښی دخپل دولت‌له‌خوا نمایندگی وکړی .

ددی کمیسارانو دصلا حیت او وظا یفــو حوزه په‌لومړی پروتو کول کښی چه دد ی تړون ضمیمه ده‌ټاکله شوی‌ده .

**نهمه ماده :** که‌چیری ددی تړون دموا دو په تعبیر یاتطبیق کښی اختلاف منځ ته‌راشی دواړه خواوی به‌لومړی د دیپلو ماتیکی خبرو له لیاری اوکه موافقت حاصل نشی دمنځګړی دښو کوښښو دجلبولو دپاره اقدام کوی او که‌چیری دا اقدامات ونتیجی ته‌ونه رسیږ ی نواختلاف ددوهم پروټو کول دمندرجه موادو پر اساس چه ددی تړون ضمیمه ده حکمیت ته محول کیږی.

**لسمه ماده :** افغانستان او ایران دامنی چه داتړون ددواړو دولتونو ترمنځ د کامــل او دایمی موافقت ښکارندوی دی . او دد ی تړون احکام یواځی دتړون دمحتویاتــو پــه حدود کښی دنته اعتبار لری اود هیڅ یــو

موجود یا راتلونکی اصـل «پرنسیپ» یـا سابقی (پرسدنت) تابع نه دی .

**یولسمه ماده :** کــه چیــر ی ډارونکــی وچکالی یا دمجبره حالاتو (فورس ماژ ور) پیښیدل دهلمند (هیرمند) دلتاته پهموقتډول داوبو رسیدل ناممکن کاندی نوددواړو خوا و کمیساران سمدستی مشوره کوی اودمشکلاتو دلری کولو یاکمولو دپاره لازم عاجل پـلا ن جـوړوی اوخپلـو مـر بوطـو حکو متو نـو «دولتونو» تهیی پیشنهاد کوی .

**دولسمه ماده :** داتړون لـههغی نیټــی شخه نافذیږی چه مصدقه سندونه یــی لــه قانونی مراحلو پوری کولونه وروسته ددواړو دولتونو ترمنځ مبادله شی .

داتــړون پهپښتــو ، دری «فارســی» او انگریزی ژبو هریوپه دوو دوونسخو کښی تنظیم شوی دی او دری واړه متنونه مساوی اعتبار لری د دریمگړی دښو کوښښونو او حکمیت تهدرجوغ کولوپهوخت کښی انگریزی متن ته مراجعه کیږی .

دکابـل پهښار کښــی د۱۳۵۱ ــ هجـری شمسی کال دکب دمیاشتی پـه ۲۲ نیټـه د ۱۹۷۳ ــ میلادی کال دمارچ دمیاشتی د ۱۳ــ نیټی مطابق لاسـ لیك او وتړلشو .

**دافغانستان لخوا :**

محمد موسی شفیق صد را عظم .

**دایران لهخوا:**

امیر عباس هویدا نخست وزیر .

## لومړی گڼه

## پروتوکول دکمیسارانودواکاو وظایفو پهباب دهلمند (هیرمند)دسیندد ترمنځ دتړون ضمیمه

**لومړی ماده :** پــهدی پروتو کول کښــی دتړون شخه مقصد هغـه تــړون دی چــه د افغا نستان او ایران ترمنځ دهلمند «هیرمند» دسیند داوبو پهباره کښی په ۱۳۵۱ ــ کال دکب په ۲۲نیټهددواړودولتونو ترمنځ لاسلیك شوی دی .

**دوهمه ماده :** ددی تړون هره خواد خپلو اتباعو نهیو کمیسار اویو دکمیسار مرستیا ل ټاکی . کمیسار اود هغه مرستیال ایران ته دهلمند «هیرمنـد» داوبــو دهغــه انــدازی د ورخوشی کولو پهباب دمعا هدی داحکا موپه پوره کولو کښی چهپه تړون کښی یی ټاکل شوی ده دخپل حکومت «دولت» نماینـد گــی کوی .

**دریمه ماده :**

الف ــ کمیساران دعالی رتبه مامورینونه ټاکل کیږی .

ب ــ ددواړو خواوهریو کمیسار کولایشی چه دخپلو وظایفو په اجرا کښی ددوو تنـو مشاورینو دخدماتو شخه چه دده دهیواد تبعه وی استفاده وکړی .

ج ــ دکمیسارانو اود هغوی دمرستیالانو اود مشاورینو دلگښتونو پوره کول دهغو ی دمتبوعه حکومتو په غاړه دی .

**څلورمه ماده :** کمیساران پهټولو هغــو مسائلو کښی چه ددی پروتو کول پهپوره کولو کښی راپرسیره کیږی دخپل دو لت نمایندگان دی اوپه دی پروتو کول دمربوطو چارو پهباب ددواړو هیوادو ترمنځ دارتباط د مامورینو پهحیث وظیفه سرته رسوی .

**پنځمه ماده :** پههغو کلو کښــی چــه د تړون دڅلورمی مادی دشرحی سره سم داوبو دبهیر اندازه داوبو دنورمال کال شخه لږوی او دایرانی خوا کمیسار دکجکی دبند داو بو دننوتلو له ځایه شخه دهلمند «هیرمند» پر سیند باندی داوبو دبهیــر پـه باره کښــی ددهراود داوبو پیژندلو په دستگاه کښــی د معلوماتو غوښتنه وکړی افغانی خوا مربو ط ارقام چهپه هغه دستگاه کښی ثبت شوی دی وهغه ته ورکوی.

دایرانی کمیسار دغوښتنی پهاثر ، افغانی کمیسار داوبو دبهیر میاشتنی راپور چــه ددهراوو دپهدستگاه کی ثبت شویدی ، وهغه ته ښکاره کوی .

افغانی کمیسار دایرانی کمیسار سره د غوښتنی په صورت مرسته کوی چه داوبــو بهیر ددهراود په دستگاه کښــی وگـوری او اندازه یی کړی .

**تبصره :** داوبو دنورمال کال دمیاشتنـــی بهیر دویشس جـدول پـه‌لاندی تـوګه دی :

| | | |
|---|---|---|
| اکتوبر | ۰۰۰ر۱۵٤ــ | ایکرفیت |
| نوامبر | ۰۰۰ر۱۷۲ــ | ایکرفیت |
| دسمبر | ۰۰۰ر۱۷٦ــ | ایکرفیت |
| جنوری | ۰۰۰ر۱۷۸ــ | ایکرفیت |
| فبروری | ۰۰۰ر۲۰۸ــ | ایکرفیت |
| مارچ | ۰۰۰ر۵۹۷ــ | ایکرفیـت |
| اپریل | ۰۰۰ر۱۵۸ر۱ــ | ایکرفیت |
| مـــی | ۰۰۰ر۰۳۳ر۱ــ | ایکرفیت |
| جـون | ۰۰۰ر٤٤۱ــ | ایکرفیت |
| جولای | ۰۰۰ر۲۱۱ــ | ایکرفیـت |
| اګست | ۰۰۰ر۱۳۷ــ | ایکرفیـت |
| سپتمبر | ۰۰۰ر۱۲۵ــ | ایکرفیت |
| ټولـه | ۰۰۰ر۵۹۰ر٤ــ | ایکرفیت |

**شپږمه ماده :** افغا نـــی او ایر انـــی کمیساران داوبو دخوشی کیدو په ځایوکښی چه دمعاهدی په دریمه ماده کښی راغلی دی داوبو داندازه‌کولو اوخوشی کولو په‌باره‌کښی دتړون داحکامو اوددی پروتو کول د موا دو سره سم په‌ګډه اقدام‌کوی .

**اوومه ماده :** افغانی او ایرانی کمیساران دکمیسارانو ګډه جرګگی جوړوی چه پسس له دی به د«ګډی جرګگی» په‌نامه یادیږی .دغه جرګگی په‌دهغو مسئلو دژر اواریدلو د پاره چه ددی پروتوکول په‌موجب وربه غاړه دی خپل زیارپه کار اچوی اود هغه تصمیمو نه به ددوی دواړ په‌حدودو کښی لازم الاجراوی.

**اتمه‌ماده :** ګډی‌جرګگی به‌خپلی عادی‌غونډی په معینه وختو کښی چه‌دجرګگی دخوا ټا کل کیږی جوړوی په عاجلو حالاتو کښی هر یو کمیسار کولای شی چه دجرګگی دمخصو صی غونډ غوښتنه وکړی . ګډی جر ګگی خپلـــی عادی غونډی دافغا نستان په‌کابل یازرنج یاد ایران په تهران یازابل کښی په هریوه چه دهغی موافقه راشی کوی .

دجرګگی مخصوصه غونډه دپورتنیو ویـل شوو ځایونو له‌جملی څخه‌په‌یوه ځای کښی‌چه دغی غونډی په‌غوښتن لیک کښی ویل شو ی دی جوړیږی .

**نهمه ماده :** کمیساران به‌دګډی جر ګـی دتیر شوی اوبوکال دفعالیتونو رپوټ دهرکال دنوامبر تر میاشتی دمخه خپلو حکومتو نـو «دولتونو» ته‌سپاری کمیساران کولای شی په بل هروخت کښی چه یی مناسب وبو لـی نور رپوټونه دخپلو وظایفو په حدودو کښی چه په‌دی پروتو کول کښی ټاکل شوی د ی خپلو مربوط حکومتو نو «دولتونو» ته وړاندی کیږی .

**لسمه ماده :** الفـ دتړون دواړه خـواوی داوبو دچارو داستفادی د متکفل (مسئـول) وزیر تر ریاست لاندی یوهیأت ټاکی،ددواړو خواو دهیأتونوله مجموعـه څخه د وزیرانـو جرګگی جوړ یږی .

ب ــ دوزیرانو جرګگی دهریوه حکو مت «دولت» دغوښتنی په‌اثر غونډه کوی .

دوزیرانو جرګگی‌واک لری چه‌هغه مشکلات چه ددی پروتو کول دتطبیق څخه رابرسیره کیږی ، لری کړی .

ګډی جرګگی دوزیرانو دجرګگی د فیصلی په‌تطبیق مکلفه ده .

ج ــ په عاجلو حالاتو یاپه هغه و خت کښی چه‌ګډی جرګگی موافقی ته‌ونه‌رسیده ای شی هریو کمیسا ر کولای شی چه د خپلو حکومت «دولت» څخه دوزیرانو دجر ګگی د غونډی غوښتنه وکړی . ګډ ی جرګگی او د وزیرانو جرګگی دخپلو غونډو طر ز العمـل پخپله جوړ وی .

**یولسمه ماده :** دوزیرانو دجرګگی د نـه موافقت په‌حال‌کښی به دجرګگی دواړه خوادی خپلو متبوعه حکومتو (دولتو) ته‌راپور وړاندی کـوی‌چـه په دپـلو ماسی لـیارو د دواړو حکومتونو (دولتونو) ، ترمنځ دحل لیـا ره ولټول شی .

هغه پریکړه چه دجرګگیو له خوا یاله دپلو ماسی لیارو منځ ته‌راځی دتړون اوددی پروتو کول په‌حدودو کښی دننه به وی او د هغه دهیڅ یوحکم سره به تناقص نلری . د دوی تصمیمونه اوهرهغه اقدام چـه د دوی لخوا کیږی په‌هیڅ صورت سابقه «پرسدنت» منځ ته‌نشی راوستاوی .

**دوولسمه ماده :** هرډول تعدیل ،تغییر ،یا تجدید نظر چه‌پردی پروټو کول باندی چـه دتړون ددواړو خواو په مننه و شی په هیڅ توګه پرتړون اویاد هغه پرضمیمه دو همه ګڼه پروتو کول باندی اغیزنلری .

**دیارلسمه ماده :** دا پروټو کول دهلمند «هیرمند» دسیند داوبو په باره کښې دافغانستان او ایران ترمنځ دتړون چه دکب په ۲۲ نیټه ۱۳۵۱ ـ لاسلیك شوی دی نه بیلیدو نکی برخه ده اود تړون دانفاذ دنیټې څخه مرعی الا جرادی .

دا پروټوکول په پښتو دری (فارسی) او انگریزی ژبو هر یو په دوو دوو نسخو کښې تنظیم شوی دی او دری واړه متنو نه مساوی اعتبار لری . ددریم گړی دښو کوښښو او حکمیت ته درجوع کولو په وخت کښې انگریزی متن ته مراجعه کیږی .

دکابل په ښار کښې دکب په ۲۲ نیټه ۱۳۵۱ ـ هجری شمسی چه ۱۹۷۳ ـ میلادی دمارچ ۱۳ سره برابردی لاسلیك شو .

دافغانستان له خوا :

محمد موسی شفیق صدرا عظم

دایران له خوا :

امیر عباس هویدا نخست وزیر



**د افغانستان صدراعظم ښاغلی محمد موسی شفیق ا و د ایران صد راعظم ښاغلی امیر عباس هویدا په داسی حال کې چه دهیلمند (هیرمند) داوبو تړون لاسلیك کوی .**

**دوهمه گڼه :**

**دپروټو کول دحکمیت په باره کی د هلمند (هیرمند) دسیند داوبو په باره کښې دافغانستان او ایران ترمنځ دتړون ضمیمه:**

لومړی ماده : په دی پروتو کول کښې د تړون څخه مقصد هغه تړون دی چه دهلمند «هیرمند» دسیند داوبو په باره کښې د افغا نستان او ایران ترمنځ په ۱۳۵۱ ـ کال دکب په ۲۲ ـ نیټه ددواړو دولتو تر منځ لاسلیك شوی دی .

**دوهمه ماده :** که چیری دتړون د مو ادو په تعبیر یا تطبیق باندی اختلاف رابرسیر ه

شی او دا اختلاف دنهمی مادی په‌مو جب ددیپلوماتیکی خبرو اویا پسی له‌هغه ددریم گړی دښوکوښښونوله‌لیاری پای ته‌ونه‌رسیږی اختلاف به‌حکمیت ته محول کیږی .

**دریم ماده** : که‌چیری دتړون یوه خواددی پروتو کول د دوهمی مادی دوو مرحلـــوله تیریدو وروسته وحکمیت ته داختلاف‌وړاندی کول لازم وگڼی ، نوموړی خـوا لـو مـړی دحکمیت دهیأت د(حقایقو دموندلو) دجوړیدو غوښتنه داختلاف تاکلی ټکی یاټکو دتوضیح سره یو ځای ددی پروتو کول دڅلور مـی مادی دموادو سره‌سم اوپه دوهمه پلاد لزوم په صورت کښی ددی پروتو کول د پنځمی مادی داحکامو سره‌سم دحکمیت ددیـوان د جوړیدو غوښتنه ددپلو ماتیکی یاد داشـت په وسیله بلی‌خواته اطلاغ ورکوی .

څلورمه ماده : ددواړو خواو نمایندگا ن دهغه دپلو ماتیکی یاد داشت درسیدو نـه وروسته چه‌ددی پروتو کول په دریمه ماده کښی یاد شوی دی‌په درو میاشتو کښی دننه غونډه کوی اود حکمیت دهیات « دحقایقو د موندلو» دجوړ ښت په‌باب اود هغه طرزالعمل په‌باره کښی چه هیات به‌یی پیروی کـو ی دموافقت دپیدا کیدو دپاره زیار باسی . کله چه داسی هیات جوړ شی اود هغوی پرنتیجه گیری اوسپارښت باندی ددواړو دولتو لـه خوا موافقه وشی مسئله حل شـو ی گڼـل کیږی .

**پنځمه ماده** : که چیری دواړه خـوا وی ددی پروتو کول دڅلو ر می مادی پراساس دحکمیت دهیأت ( دحقایقو دموندلو) **دنتیجه‌** اخستلو او سپار ښتنو په‌باب **موافقی** ته‌ونه رسیږی داختلاف ټکی یاټکو دحکمیت و دیوان ته‌چه له دروغړو نه‌به‌په لاندی توگه جـو ړ شوی‌وی وړاندی کیږی .

الف ــ هـره خواله خپلو اتباعو څخه یو تن دحکم په‌عنوان ټاکی .

ب ــ دریم حکم چه دحکمیت ددیـو ان مشربه‌وی ،ددی‌مادی‌دالف‌فقری‌په‌اساس دغړو له‌ټاکل کیدونه پس ددری میاشتو په موده کښی ددواړو خواوپه‌موافقت ټاکل کیږی .

که‌چیری دریم حکم په درو میاشتو کښی دننه ونه‌ټاکل شی‌یوه خوأیا دواړه خـواوی دمتحده مللو دسر منشی څخه غوښتنه کوی چه دریم حکم وټاکی .

دحکمیت ددیوان مشر به چه‌ددی مـا دی د(ب) فقری په‌اساس،ټاکل کیږی دهغه‌هیواد له اتباعو څخه وی چه دافغا نستان اوأیران سره دوستانه روابط ولری خود هیڅ یوه‌سره به گډی گټی ونلری .

ح ــ دحکمیت دیوان دخپلو چارو د پوره کولو دپاره خپـل لازم‌اوموثر طرزالعمـل د دواړو خواوو په موافقه چه دتړون لـو مړی گڼه پروتو کول اودی پروتوکول داحکا مـو سره سم وی جوړوی اودور سپارل شووچارو دسرته رسولو دپاره دتړون سره سم اودهغه په‌حدود کښی دننه زیار باسی .

د ــ دحکمیت دیوان دخپلی صادری کړی پریکړی یوه نسخه چه‌په لیکلو دلایلوباندی تائید شوی وی ددواړو خواؤ ته‌ورکوی .

ه ــ دحکمیت ددیوان پریکړه قطعی او اجرائی لازمه ده .

**شپږمه ماده** : که چیری دحکمیت دهیأت «دحقایقو دموندلو» دغړو څخه یوغړی چه په څلورمه ماده کښی راغلی دی اویادحکمیـت ددیوان یوغړی چه‌ددی پروتو کول په‌پنځمـه ماده کښی راغلی دی‌په یوه‌دلیل دوظیفی ــ څخه پاتی شی په‌هغه ترتیب چه‌دی پخـوا ټاکلی یاغوره شوی ودده عوض منځ‌ته‌راځی .

په دی ډول راتلو نکی غونډی په‌هغه‌وخت بیاجوریږی ،چه‌نوی ټاکل شوی یاغوره شوی غړی په‌هغو ټولو گزارشاتو باندی چـه دده تر انتخاب یاټاکل کیدو دمخه واقع شو ی دی په‌کامل ډول‌دځان پوهولو د پاره کافـی وخت ولری .

**اوومه ماده** : دهرحکم لگښت دهغه دولت له خواچه حکم ئی ټاکلی دی‌ورکول کیـږی اود دریم حکـم لگښت دواړی خـواوی پـه برابر ډول ورکوی .

**اتمه ماده** : هرډول تعدیل ، تغییر ، یـا تجدید نظر چه‌په دی پروتو کول کښی چه دتړون ددواړو خواوو په‌مننه واقع‌شی ، بـه هیڅ ډول پرتړون یابه ضمیمه شوی لومړی گڼه پروتو کول تاثیر نلری .

**نهمه ماده** : دا پروتـو کـول د هلمنـد «هیرمند» دسیند داوبو په‌باب دافغا نستا ن اوایران ترمنځ دهغه تړون نه‌بیلیدونکی برخه

## د افغا نستان کالنی

ده چه‌په کابل کښبی دکب‌په ۲۲ ـ۱۳۵۱ ـ نیټه لاسلیك شوی دی اود تړون دانفاذ لـه نیټی تراجرا لاندی راځی . داپروتو کول په پښتو ـ دری «فارسی» او انگریزی ژبوهریو په دوونسخو کښبی تنظیم شوی دی اودواړه متنونه مساوی اعتبار لری، ددریمگړی دښو کوښښونو اوحکمیت ته‌درجوع کولو په وخت کښبی انگریزی متن ته مراجعه کیږی .دکابل په‌ښار کښبی د ۱۳۵۱ ـ شمسی هجری کال دکب دمیاشتی په۲۲ نیټه ،دمارچ ۱۳ـ۱۹۷۳ میلادی کال مطابق لاسلیك شو .

دافغا نستان لخوا :

محمد موسی شفیق صدراعظم .

**دایران له‌خوا :**

امیر عباس هویدا نخست وزیر

همدا شانی ښاغلی شفیـق دحـوت په۲۲ مانښام دښاغلی هویدا په‌ویاړ دباندنیو چارو دوزارت دهرکلیو په‌تالار کی‌غرمنی میلمستیا کړی وه .

پدغی میلمستیا کی‌چه دهلمند له سینـد څخه داوبو دتړون له‌لاس لیك نه وروستـه شوی وه دشوری ددواړو مجلسونو رئیسانو، قاضی القضات ،سلطنتی دربار وزیر،دحکومت غړو ،دستری محکمی قاضیانو ، دلوړی رتبی عسکری اوملکی مامورینواودکوږ دیپلوماتیکو مشرانو برخه اخیستی وه .

پدغی میلمستیـا کـی ددواړو هیـواد و صدرا عظمانو ترمینځ ویناوی وشوی . همدا شانی ترغرمی وروسته په پنځو بجو ښاغلی صدراعظم هغه ایرانی ژور نالیستان چـه د ایران له‌ښاغلی صدرا عظم سره کابـل تـه راغلی دی دصـدارت دگلخانی په‌ماڼـی کـی ومنل او دافغانستان دپر مختیا اوافغا نستان او ایران داړ یکو دپرمختیا په‌باره کی یی د هغوی پوښتنوته ځواب ورایه .

**دصدراعظم ښاغلی شفیق دوینا متن :**

جلالتماب صدرا عظم ادافغا نستـا ن د حکومت له خوا تاسو جلالتماب ته‌دهغو خلکو دصدراعظم په‌حیث چه زمونږ دخلکو سر ه یی دتاریخ په اوږدو کی علایق ، وروستـی حدنه پیژنی دزړه دکومی وایم : «افغانستان ته‌ښه راغلا ست» .

مونږ دیوه نژاده پیدا شوی او په‌یـو ه فرهنگ کی روزل شوی یو اوداسلام نـــه مخکی او وروسته یودبل سره په کوم شـی چه‌پاتی مینځه لاړ شی ، څه‌وخت چه‌هر څـه له‌کړی دی اولکه چه‌ویلی دی یوه فرهنگـی سیمه کی ژوند کیږی ، هغه فرهنگ دی .

همدا اوس ددغو خلکو او ددغه دو لت یوه رسمی ژبه‌هغه ژبه ده‌چه زمونږ په‌نسبت زه په داسی فصاحت سره دیوه فرهنگ‌په کور او کهول باندی‌بل‌شاهد لږ لیدلی‌شم . تاسو هغی خواته ترك ، عرب او نور ددری له دغه فرهنگ‌سره بلدکړل اومونږ دپخوانی هند طوطیان دفارسی په‌شکر وروږ کړل .

همدغه راز پدغی وږځ بلکه پدغو تاریخی شیبو کی ستاسی دسفر مقصد ته‌چه زمونږ ملتونو ته خاص ارزښت‌لری په‌پوره‌صمیمیت هر کلی وایو .

افغانستان دخپل ملی مصلحت په مراعات سره حتی په‌ډیرو سختو شرطونو کی لـــه سیستان څخه لازمی اوبه‌ندی سپمولی اووبه یی نسپموی .

که چیری مونږ‌نن دیوی پیړی خبروکولو او اوریدلونه وروسته دهیلمنـد د غـوټی د پرانستلو لازه‌وموا وپه‌هغی باندی ددوملتونو اوددوو پادشاهانو په‌نمایندگی لاس لیـك کړو بی‌له شکه دابری د دواړو اعلیحضرتانو دپوهی مشری اودهر هغه‌سبب له‌مینځه وړلو دپاره ددواړو خلکو دپه‌زړه پوری هیلی نـه سرچینه اخلی چه‌له هغونه دنن یاسبادخپگان احتمال متصور وی .

ستاسو جلالتمآب حوصله منډی‌اوسیاسی ـ پوهه به‌دهغه ښه‌نیت سره سمه چه‌تل مولـه تاسو سره دهیلمند درود داوبو په‌شاو خوا کی‌په اوږدو خبرو کی احساس کړی دی . دی ور ځـی ته زمونـږ په‌رسیدلو کـی نه هیریدو نکی نقش‌گنهل کیږی .

نن ماته اوزما همکارانو ته‌درښتیا نـــی خو ښی ځای دی‌چه‌کولی شوچه دافغانستا ن دشوری په‌وړاندی دهیلمند د رود داوبـو د مسئلی دحل دلاری سند کیږدو . لکه‌چه دوه شپی مخکی موږویل زمونږ په‌هیواد کی دحل ددغی لاری دصحت اوسقم وروستی قضاوت

ددغې شورې او وروسته ترهغه دافغانستان دپاچا او اولي الامر په لاس کېدې .

افغان ملت چه په تیره نیمه پیړۍ کې خپل کوښښونه یې داستعمار دپردیو دتیرې سره دجگړې دپاره وقف کړي دي ،اوس داقتصادي، اجتماعي او سیاسي تحول په لاره کې کوښښ کوي. دافغانستان دپاچا معظم همایوني اعلیحضرت مدبرانه لارښودنې زمونږ دد غو هلو ځلو ټینګ بنسټ دی .

جغرافیې اوتاریخ زمونږ دملت روحیاتو او سیاست ته ځانګړی رنګ اوبڼه ورکړیده . زمونږ خلك داستعماري مداخلو اودسیسو په خلاف اوږدو جګړونه وروسته چه یوه نیمه پیړۍ یې پرله پسې دوام وکړ ، په طبیعي ډول دبیطرفي خواته لاړل .

دافغانستان لویو جرګو په پرله پسې ډول زمونږ دملي ژوندانه دپیشوا معظم همایوني اعلیحضرت ستر مشر توب اوقیادت لا ندې دنه انسلاك مثبتې اوفعالې بیطرفۍ او په نظامي اوسیاسي تړونونو کې دنه ګډو ن کولو په پخو بنیادونو باندې دافغانستان دباندنۍ سیاست* ټینګ کړی دی .

ددغه سیاست له مخه مونږ ځانونه دهغو ټولو خلکو په دردونو اوهیلو کې شریك بولو چه له هغوی سره په ګډه ددریمې نړۍ تراسمان لاندې ژوند کوو .

دافغانستان حکومتونو کلونه کلونه او ددې پیړۍ دتاریخ په لوړو ژورو کې په دایمي توګه پردغې لارې چه دهیواد ملي بنیګړوته متوجه دی روان پاتې شوي دي .

دنړۍ دټولو ملتونو سره زمونږ ددوستۍ ټینګښت اود ملګرو ملتو دمنشور سره سم دبین المللي مرستو داستحکام اود متقابل احترام په اساس اودملتونو ترمینځ د مساوات اود هیوادونو په کورنیو چارو کې لاس نه وهل دملتونو اودنړۍ دخلکو دحقوقو ملاتړ چه داستعمار اونژادي توپیر په مقابل کې لاس اوګریوان دي ټول دافغانستان د باندنۍ سیاست ستر عناصر دي. دګاونډیو هیوادو اوهغو ملتونو سره دښوعلایقو پراختیا چه دافغانستان سره ژور تاریخي پیوند ونه لري ددغه سیاست ،مهم اساسات دي .

دافغانستان خلك دپاکستان د خلکو سره تاریخي علایق لري اومونږ دلته دغه علایق او دهغو څخه دپیدا شوي وروروګلوي دزړه له کومې قدر کوو .

دپښتونستان دملي قضیې هغې قضیې تعقیب چه زمونږ دهیواد په چارو او زمونږ دملت په سرنوشت کې داستعمار دهغه وخت دلاس وهلو نه راپیدا شوې نه یواځې د پاکستان دملت سره دوروروګلوي دغه احساس څخه لرې نه ده ،بلکه ددغو علایقو ساتنې او دایمي تقویې ته متوجه ده .

دافغانستان دخلکو تاریخي حق او وظیفه ده چه دپښتونستان دخلکو دپاره دسرنوشت دټاکلو دحق ملاتړ وکړي . په روغه جوړه ددغې قضیې عادلانه حل اوفصل دافغانستا ن او پاکستان اود سیمې دهیواد ونو ترمینځ دهمکارۍ امکانات په سالم او ګټور ډو ل برابروي دهند اوپاکستان دنیمې قارې په باره کې عقیده لرو چه دپاکستان ،هنداو بنګله دیش ترمینځ تفاهم اوهمکاري یو ضروري کار دی او له دې امله دبنګله دیش دموجودیت پیژندنه اود هغو سره یو ځای خپل هیوادته دپاکستان دفوځي بندیانو بیرته ستنیدلو په لحاظ دد ې سیمې دپاره دتوجه وړدی .

دافغانستان خلك داسرا ئیلو تیر ی کوونکې سیاست نه یواځې منځنۍ ختیځ ته بلکه اسلا مي نړۍ اوپه نړۍ کې سو لې ته متوجه بولي اوپرله پسې دعربي هیوادو نو دنیول شوو ځمکو دخوشې کولو اود فلسطیني وروڼو دخلکو دحقوقو دتأمین ملاتړ کوي .

دنړۍ ملتونه هیله لري چه دخارجي لاس وهلو نه پرته داقتصادي او اجتماعي تحول د لار په غوره کولو کې اختیار ولري اود نړ ې دټولو نورو هیوادو نه هیله لري چه د دوی ددغه مسلم حق مراعات وکړي .

**جناب صدراعظم !**

په اجتماعي او اقتصادي برخو کې دایران وروستي پرمختګو نه دهغه ورور هیواد دخلکو دزحمتونو اوستاسو دپاچا اعلیحضرت همایون محمدرضا شاه پهلوي دعاقلانه قیادت نتیجه ده. دورور ملت ایران داپرمختګونه او هر ه خوښي اونیك مرغي چه ستاسو دخلکو په برخه شي دافغانستان دخلکو دخوښۍ سبب دی .

تاسو جلالتمآب صدراعظم ستاسو درند و همکارانو او دادب اوپوهې خلکو ته‌چه تاسو سره راغلي دي .اود دوو ملتونو ترمينځ د فرهنګي وصل دپخوانی کړی دوددی اوهمدغه راز هغــو ځوانانوتــه چه دځلورمــی قو ی مطبو عاتو چه دليدلو لوستلو او اوريدلو د مطبوعاتو نمايندګی کوی اوله تاسو سره یو ځای دغه وطن ته‌راغلي دی اوزمونږ دخلکــو ترمينځ دتفاهم دوسايلو په برابرولو کی د هغوی نقش هم داهميت وړاوهم حساس‌دی. تاسو ټولو ته‌په دغه هيواد اوپدغه محفل کی دخپل‌ځان اودخپلو همکارانو له خوا دزړه له کومی هرکلی وایم .

**دښاغلی هويدا دوينامتن :**

جلالتمآب‌صدراعظم، عالي‌جنا باتو ، ميرمنوښاغلو! زما دپاره دډيری خوشالي خبره ده چه ځان يوځل بيا دخپلو غيرتمنو همکيشس او هــم نژادو دورونو په‌مينه افغانستان کی‌وينم او افغانی دوستان اوعزيزان چه دزړه دکو می ورسره مينه‌لرم گورم .

دا ځای افغا نستان لکه څنګه چه دايران له‌ډيرو لری ځايونو څخه به‌دکابل ، کندهار او هرات پوری بــزرګان اور جال راتلل او دلته به‌ټوليدل ، نوددغو ميړونو د ځامنــو د دوستی اويو والی‌دمبادلی ځای به‌هم دغه وی څکه زمونږ وروړګلوی او دوستی يو دا سی کارندی چه دزمانی په‌تيريدو ســره لــه‌ياده ووځی مونږ لکه دوه غبر ګونی ورونه يوځای پيدا او يوځای اوسيدلی يواو يوله‌بل سره په‌ښو اوبدوکی ګډيو اوددغو پيښوپه‌جريان کی‌تل تاسی افغان اومونږ ايرانی پاتی شوی يونوديورنګه وروڼو په‌خير به‌ژوند کوو اويو دبل په‌مرسته به‌په پيښو اوکړ اوونوبــر ی مومو . که‌چيری تاريخ ته‌نظر واچوو وينوهغه دولتونه چه‌په ننی افغانستان کی‌لــه‌ډيــر ی لرغونی اوپخوانی زمانی خپلواکی ،جوړښول، اوپه‌تيره بيا په‌دغه هيواد کی دستر کوشان دډير غښتلی دولت جوړيدل ددی‌ښبه وه چه داځای به‌دنړی په‌تاريخ کی‌تل‌ديوی خپلواکی خاوری په‌نامه وپيژندل شی .دغی خپلوا کی په دوو وروستيو پيړيوکی دنړی نړی له‌ډير قوی استعماری طاقت سره دافغانستان دخلکو په‌زور وره جګړه کی‌خپل هغه بنياد لا پسی ټينګ کړچه له‌مينځه تلونکی نه‌وه .

داه‌يم ګران ناست کسان اودايــران او افغانستان نورخلك له‌ماسره يو راز عقيــده لری چه ددواړو هيوادو اړيکی داعليحضر ت همايون شا هنشاه او دافغانستان دپاچامعظم همايو نی اعليحضر ت محمــد ظاهــرشاه د ښو لارښوونوپه سيوری کی‌تل ټينګك او له مينځه تلونکی ندی .

څوك داسی دوه هـوادونه په‌نړی کی‌پيدا کولای شی چه دايران او افغانستان په‌اندازه ګډ ازخونه ولری ؟ ګاونډيان يويو راز نژاد لرو دګډ فرهنګك خاوندان يواوګډه تار يخــی لرغنتياهم لرو .

زمونږ سياسی او جغرا فيايی بريــد او پوله چه ددواړو ملتونو په‌وړاندی سمه او منلی ده‌اود کومی خبری ځای نلری يوله بل څخه زمونږ زړونه اوساوی سره‌نه بيلــو ی مونږ بايددغه راز استثنا يی نعمت چه‌خدای دواړو ولسونو ته‌وړپه برخه‌کړی دی .غنيمت وګڼو اوهغه ته په‌درنه سترګه وګورو اوداسی لاره غوره کړو چه‌ددواړو هيوادو بچيان‌ددغه وروړګلوی اوهمدلی له‌ميوی څخه برخورداره وی.

په همغه توګه چه‌زمونږ دمعنوی او باارزښتو فرهنګی سوابقو لــه‌پلو يو دبــل مکمل او بشپړونکو يو ،په‌زياترو نوروشئونو کی هم کولای شو چه‌په لاګټورو اواغيزمنو همکاريوــ سره دتکامل په‌لاره پرمخ لاړشو پداسی‌توګه چه‌په زياترو اړخونو کی نورو ته اړو نــــه اوسو .

زه دايران داعليحضــرت شا هنشــاه د خدمتګار ،دحکومت درئيس اودايران دولسـ دنماينده په‌توګه پدی ځای کی داخبره اوژبه کوم چه‌دايران دولت اوملت به‌تل ستا سی له دولت اوولس سره‌دهمکاری په‌لاره کــی دزړه له‌کومی پوره چمتووی .

دايران دباندنی سياست په رو غه جوړه دفعال ګډ ژوند اوټولو دولتونو سره ددوستی په‌بنيادولاړدی. لکه‌څنګه چه‌خبرياست ، خپل ټول کوښښ مو دبين المللی سولی‌او امنيت دساتنی دپاره پکار اچولی او اچوويی .

دهند دنيمی وچی په‌باب عقيده لرو چــه

پدغی سیمه‌کی دسولی ټینګښت او ثبات د ملګرو ملتو دمؤسسی‌دپریکړوپه اجرا اودغه راز دجګړی دبندیانو دبیرته سپارلو په‌بار ه کی دژنیو تړون‌ته‌په درنده سترګه کتلوسره امکان لری اومونږ دزړه له‌کومی هیله لروچه پدی توګه په‌نیمه وچه‌کی دسولـی صفـا او دوستی یومحیط مینځ ته‌راشی .

دعربو او اسرائیلو لانجه هـم بایـد د ملګرو ملتو دموسسی دپریکړو په‌تیره بیا د امنیت دشوری د ۱۹٦۷ کال دنوا مبر د۲۲ نیټی دپریکړی له‌مخی اواره شی .

له‌نیکه‌مرغه دهیلمند دسیندله اوبـو څخه دګټی اخیستو دتړون لاس لیـك د دوا ړو هیوادو په‌ګټه دی او دښه نیت نه‌په ډله‌محیط کی پداسی وخت‌کی ترسره کیږی چه‌دپسرلی دموسم وږمه په‌هر ځای کی‌په چلیدو ده .

زه دغه ګټهور نژدیوالی ښـه فال‌نیسم او امیدلرم چه دپسرلی په‌را رسیدو سره‌زمونږ ددواړو ورونو هیوادو اړیکی ددغـو دوا ړو سیمو ددرنو مشرانودلارښوونو په‌سیوری کی له‌تازګی اوخوښی نه‌په‌ډك پسرلی اونوروزکی په‌هر ځای کی‌په چلیـدو ده، پرمخ لاړشی . کورودان .

**دایران صدراعظم دښاغلی شفیق په‌ویا ړ میلمستیا وکړه .**

صدراعظم ښاغلی‌محمدموسی‌شفیق دحوت‌په ۲۳ نیټه دشپی په‌اتـه نیمـو بجوپه هغـی میلمستیا کی ګډون وکړچه‌دده په‌ویاړدایران دصدراعظم ښاغلی امیر عباس هویدا له‌خوا دانټر کانتیننتال په‌هوټل کی شوی وه . په دغی میلمستیا کـی د شـوری رئیسا نـو قاضی القضات دسلطنتی دربار وزیر ښاغلی علی محمد دحکومت غړو دستـر ی محکمـی قاضیانو دلوړو رتبو عسکری‌اوملکی مامورینو اوپه کابل کی اوسیدو نکو کوردپلو ماتیکو برخه اخستی وه. په‌دغه محفل کی دښاغلـی هویدا او ښاغلی شفیـق ددواړو هیـوادو د روابطو په‌باره کی لنډی ویناوی وشوی .

**دایران صدراعظم خپل هیوادته‌لاړ :**

دایران صدرا عظم چه دصدراعظم ښاغلی محمدموسی شفیق په بلنه دحوت‌په ۲۱ نیټه دیو هیات په‌مشری کابل ته‌راغلی ؤ دحو ت په ۲۳ـ نیټی سهار تهران ته‌لاړ .

ښاغلی شفیق او ښاغلی هویدا د حکومت له‌غړو ،عسکری اوملکی دلوړو رتبومامورینو، دکورد ډیپلوماتیکو ځینو مشرانو سره دخدای په امانی نه وروسته دښاغلی محمد موسـی شفیق په ملګرتیا داحترام دګارد مراسم‌ومنل اوهغه‌یی وکوت . پدغه وخت کی موزیك د ایران او افغانستان ملی سرود ونه وغږول .

ښاغلی شفیق دښاغلی هویدا سره تـر الوتکی پوری ملګرتیا وکړه او الوتکی تـه نژدی دسلطنتی دربار وزیر ښاغلی‌علی‌محمد ، ددفاع دکورنیو چارو ، کرنی او اوبولګولـو وزیرانو اوپه‌کابل کی دایران لـوی سفیـر حاضر ؤ .

دایران صدرا عظم ښاغلـی امیر عباسـس هویدا له‌کابل څخه تهران ته دستنیدو پـه وخت کی دغه‌پیغام له الوتکی‌څخه دصدراعظم ښاغلی محمد موسی شفیق په‌عنوان مخا بره کړی دی .

جناب جلالتمآب دافغا نستـان صدراعظم ! اوس چه دافغا نستان له‌دوست اوورورهیواد څخه ځم،لازمه‌ګڼم یوځل بیادجناب عالی او د ټولو افغانی ورونو له‌تودی مینی اوهر کلیو څخه دځان اوخپلو ملګرو له‌خوا دزړه له‌کومی مننه وکړم .

دلوی خدای له دربار نه‌دمعظم همایو نـی اعلیحضرت دسلامتیا دوام اوبقا اوافغانی ـ ورونو ته دخدمت په‌لاره کی دجناب عا لی او ستاسی دملګرو دزیات بری هیله کوم .

**دافغا نستان او ایران ګډه اعلامیه**

د صدراعظم ښاغلی محمد موسـی شفیق په‌بلنه دایران صدراعظم امیر عباس هو یدا اوددوی ملګری د۱۳۵۱ کال دحوت په۲۱نیټی نه‌تر ۲۳ ـ نټی پوری چه د۱۹۷۳ ـ کال د مارچ د ۱۲ ـ نـه‌تر۱٤ ـ پـوری کیـږ ی افغا نستان ته‌رسمی سفر وکړ .

دایران صدراعظم په‌کابل کی داستو ګنی په‌وخت کی دمعظم همایونی اعلیحضرت په

# د افغا نستان کالنی

حضور مشرف شواو اعلیحضرت همایو نـی محمد ظاهر شاه حضور ته‌یـی داعلیحضرت همایون محمد رضاشاه پهلوی د ورور ولی او دوستی هیلی څرگندی کړی .

معظم همایونی اعلیحضرت قدر دانی سره ددغو هیلو یادونه وکړه اودایران دصدرا عظم نه‌یی وغوښتـل چـه ددوی داعلیحضـرت د وروولی هیلی اعلیحضرت محمد رضا شاه پهلوی ته‌ورسوی .

دافغا نستان صـدرا عظـم او دا یـران صدراعظم پداسی حال کی‌چه ددواړو خواو و هیأتونه حاضروو دهیلمند دسیند نه داوبـو په‌موضوع باندی وروستی خبری وکړی دپوره موافقی نه وروسته دواړو صدرا عظمانـو د ۱۳۵۱ ـ کال دحوت په ۲۲ـ نیټه ددی‌موضوع په‌باب له دوو پروتو کولونو سره یو ځـای یو تړون لاسلیک کړ .

دغه سندونه په دقانونی مرحلو دتیرو لو وروسته پـه دواړو هیـوادو کی‌نافـذ او د اعتبار وړوی . داخبری په‌ډیر دوستانه‌محیط کی چه ددواړو هیوادو نو اوږدی ورورولـی دپیوند ونو څرگندوی دی وشوی . پدغوخبرو کی دافغانستان لخوادغو ذواتو برخه درلوده: دمالیی وزیر ښاغلی محمدخان جلالر ،دکرنی او اوبولگولو وزیر داکتر عبدالوکیل ، دپلان وزیر داکتر عبدالو احد سرابی . دهیلمند د ناوی پراختیا لوی رئیس انجنیر میرمحمـد اکبر رضاء ،په‌نوی ډیلی کښی دافغا نستا ن لوی سفیر داکتر عبدالحکیم طبیبی ،دباندنیو چارو دوزارت پخوانی‌سیاسی معین په‌پاریس کی دافغانستان لوی‌سفیر داکترروان فرهادی، دباندنیو دوزارت سیاسـی مدیـر د اکتـر عبدالواحد کریم ، دکرنی‌اواوبولگولو دوزارت معین انجنیر جمعه محمد محمدی ، دباندنیو چارو دوزارت دتړونو نو اوحقوقو دمدیریـت مرستیال داکتر عبدا لفرید رشید ، دباندنیو چارو دوزارت دسیاسی روابطـو د مدیریت پخوانی مرستیال په‌ملگرو ملتو کی دافغانـی دایمی نمایندگی لومړی سکر تر ښـا غلـی حبیب الله کرزی ، دباندنیو چارو دوزارت د سیاسی لوی مدیریت دمنځنی ختیځ د چارو متصدی ښاغلی محمدیوسف صمد. دایرا ن لخوا په‌دغو خبروکی دغوکسان گډون‌درلود :

دصدراعظم نایب مهندس صفی اصفیا ، په افغانستان کی ، دایران لوی سفیر ښاغلـی جهانگیر تفضلی ،دایران دباندنیـو چارو د وزارت سیاسی مرستیال لوی‌سفیر منوچهرو-فرتاش ، دایران دباندنیو چارو په‌وزارت‌کی رئیس لوی سفیر حسین شهیدزاده . دایران دصدراعظم مشاور لوی سفیر پرویزراجی ، په‌کابل کی دایران دسفارت مختار وزیر او مستشار ښاغلی منصـور مشکیـن پوش ، دایران دصدراعظم دمخصو ص د فتر لـو ی مدیر داکتر محمدصفا ، دباندنیـو چـارو د وزارت دسیاسی مرستیال ددفتـر ر ئیس ښاغلی هوشنگ عامری . دایران صدرا عظم دافغانستان دحکو مت دوورورگلوی دتاوده هر کلی اومیلمه پالنی شکریه اومننـه وکړه . دواړو خواو داډ څرگندکړ چه‌دغه سفرونه به ددواړو هیوادو نو د ورور ولـی دعنعنـوی پیوندونو په‌لا ټینگولو اودنیك گاونډ یتو پ دمناسباتو په‌پراختیا کی گټور یدل او اغیزه ولری .

# وزارت معارف

وزارت معارف که امور تعلیم وتربیهٔاولاد مملکت بدوش آن میباشد برای نیل به‌این منظور پلان مرتبه ای رویدست دارد که در صورت منظوری بودجه تدویری انکشا فی به تأسیس وارتقاء مکاتب درمرکز وولایات کشور به اساس پیش بینی وشرایط ارتقاء اجرآت میگردد، متأسفانه درسال جاری بنا برعدم منظوری بودجه تدویری‌انکشافی بادر نظر داشت کیفیت تعلیمی به سویه ها ی ابتدائی ثانوی تأسیسات صورت نگر فت و بودجهٔ انکشافی آن‌در تعمیر وتجهیز مکا تب درسه ربع تخصیص داده‌شد صرف‌درتعلیمات مسلکی بنابر ضرورت مبرم دوباب از تاسیسات متذکره قرار ذیل صورت گر فته است .

۱ ـ دارالمعلمین عالی هرات :

۲ ـ مدرسهٔ روحانی پکتیا :

از جمله مکاتبیکه درافغا نستان فعا لیت مینماید درمرکز ودر ولایات لیلیه میباشدکه بدین ترتیب یك تعداد شاگردان بی بضاعت ومسافر دران اعاشه واباته میشوند وتما م احتیاجات ضروری آنها ازقبیل مواد غذائی البسه جای خواب رخت خواب استحمام و غیره بدوش مکاتب مربوط بوده از بودجه دولت تکافومیگردد برعلاوه بودجهٔ دولت که‌در این‌حصه‌مورد استفاده قرارداده میشود،مؤسسهٔ مواد غذائی جهان هم به‌پیمانهٔ دوملیون دالر عوض تادیهٔ شیر،روغن، پنیر،پودر،تخم مرغ چای وبوره ،گندم، ماهی ،گوشت و غیره بوزارت معارف کمك کرده است که ازاین کمك هاقسماً به‌طلاب لیلیه توزیع‌شده است اجرآت نصاب معار ف در سال ۱۳۵۱ قرار ذیل خلاصه میگردد :

این مرکز روی اهداف ذیل مصدرفعالیت های آتی گردیده است .

۱ ـ ایجاد انسجام درتعلیمات ساینس‌و ریاضی معارف .

۲ـ انکشاف نصاب تعلیمات سا ینس و ریاضی .

الف ـ تجدید نظر برکتب‌موجوده ساینس وریاضی مکاتب متوسطه ولیسه ها وتهیه رهنمائی لابراتوار ، رهنمائی معلم وغیره ممد درسی .

ب ـ انکشاف یك نصاب تعلیمی ساینس وریاضی جدید برای مکاتب متوسطه ولیسه متکی بر احتیاجات حیاتی شاگردان ومقتضیات محیطی افغانستان .

ج ـ نوشتن کتب درسی رهنمائی لابراتوار رهنمائی معلم و غیره ممد درسی با ساس انکشاف نصاب جدید تعلیمات سا ینس و ریاضی .

۳ ـ تهیه‌وترمیم ،استعمال سامان ساینس

الف ـ استعمال مؤثر سامان موجو دهٔ لابراتوار های لیسه ها .

ب ـ تهیه سامان ازمواد داخلی ومواد خام خارجی در ورکشاپ های صنعتی مرکزساینس معارف .

ج ـ نوشتن کتب درسی،رهنمائی لابراتوار، رهنمای معلم وغیره ممد درسی به اسا س انکشاف نصاب‌جدید تعلیمات‌ساینس وریاضی

٤ـ انکشاف یك سیستم بهتر ا رزیا بی درساینس وریاضی معارف .

٥ـ تهیه پروگرام ها ی تعلیمات دا خل خدمت .

الف ـ تربیهٔ سوپر وایزرهای ساینس وریاضی بغرض استعمال بهترومفید ترنصاب تعلیمی وکتب درسی استعمال سامان‌لابراتوار هاو بهبود سیستم ارزیابی مضا مین ساینس وریاضی مکاتب متوسطه ولیسه ها .

ب ـ بلند بردن سویهٔ تعلیمی معلما ن ساینس وریاضی ازطریق سوپر وایزرهای سا ینس ور یاضی به همکاری مؤسسا ت ذیعلاقه توسط پروگرام های داخل خدمت . انکشاف ریسرچ تطبیقی بحیث زیر بنای پروژه های تعلیمات ساینس وریاضی .

فعالیت های مرکز ساینس معا رف که دارای دیپار تمنت کیمیا، فزیك ،بیولوژ ی ریاضی ،ریسرچ ودیزاین تعلیمات ساینس

ابتدائی وپروگرام های داخل خدمت بـو ده وفعالیت های ذیل را اجراء نموده‌است .

۱ـ استخدام سوپر وایزر هـا بـه تعداد ٤٨ نفر که‌ایشان ازجمله فارغ تحصیـلا ن پوهنتون درشقوق ساینس وریاضی بو ده برای مرکز وولایات استخدام نموده که از آنجمله به‌تعداد ۱۵نفر سوپر وایزر هـا در مرکز و۳۳نفر در ۱۸ ولایت ذیل شا مـل خدمت اند . درولایت غزنی دونفر ولا یـت وردگ دونفر ولایت‌زابل دونفرولایت ارزگان یکنفر درولایت فراه یکنفر ولایت‌بغلان دونفر ولایت سمنگان دونفر درولایت تخار دو نفر ولایت بدخشان یکنفر درولایت پروان دونفر ولایت کاپیسا دو نفر ولایت لوگر دو نفـر ولایت لغمان دونفر ولایت‌کنرها دونفر ولایت بامیان دونفر ولایت جوزجان دونفر ولا یـت غورات دونفر ودر ولایت فاریاب دونفر .

برعلاوهٔ سوپر وایزر هاکه‌درمرکز ولایات شامل خدمت شده‌اند برای اینکه شاگردا ن ومعلمان درمضامین سا ینس استفاده بهتر کرده بتوانند به‌تعداد ۳۵ جلدکتب رهنما ی معلم ومتعلم رادرمضامین فـزیك ، کیمیا و بیولوژی برای‌صنوف دوازده، یازده ،ده، نه هشت وهفت تهیه نموده وهمین قسم کتب درسی ذیل راطبع نموده اند . کتاب فزیـك برای صنف هفت کتاب کیمیا برای صنف ۷ کتاب بیولوژی برای صنف هفت کتاب‌حساب برای صنف هفت هند سه برای صنف هفت فزیك برای صنف هشت کیمیا برای صنف هشت بیولوژی برای صنف هشت ریا ضـی برای صنف هشت کتاب کیمیا برای صنف۹ وکتاب کیمیابرای صنف ده .

علاوتاً درنظر است که یك تعداد کتب‌دیگر در اوایل سال ۱۳۵۲ بعداز تجدید نظربرای چاپ آماده گردد .

**مدیریت یونسکو :** مؤسسهٔ یونسکو از چندین طریق به افغانستان کمك مینماید که ذیلا خلاصه میشود :

۱ـ ازطریق پروگرام انکشاف ملل متحد بعضی پروژه هامانند پروژه پلان گـز اری تعلیم و تربیه انکشاف تعلیمات سا ینـس برودکاستنگ تعلیمی‌ازطریق پروگرام‌انکشافی ملل متحد تمویل میگردد وکمك های درداخل وخارج مملکت .این مساعدت ها که باساس موافقهٔ جداگانه‌وزارت معارف ومقامات یونسکو پاریس درسال ۱۳۵۱ صورت‌گرفته ، تاسال ۱۹۷٦ ـ ادامه پیدا خواهد کرد .

۲ـ ازطریق ممالك عضو یونسکو ، د ر پروژه های امحای بی سوادی تعلیمات‌اکابرو یاپروژه سواد حیاتی که‌بکمك مشترك‌وزارت زراعت ومعارف پیش برده میشود ، ازطرف ممالك عضو یونسکو تمویل میگردد و ایـن پروژه ها شامل ارسال متخصصین تهیهٔ‌مواد وتربیهٔ پرسونل افغانی در داخـل و خار ج کشور میباشد .

۳ـ ازطریق پروگرام عادی، درین‌پروگرام در زمینه های خیلی مشخص نظر به‌ضرورت های‌آنی وفوری به‌افغانستان مساعدت میشود، مثلافیلوشپ ها درساحهٔ های تعلیمات متداوم تعلیمات زراعتی حفظ آثار کلتوری کتابخانه ها ارسال متخصصین برای مطا لعه سیستم امتحانات حفظ ابدات تاریخی تهیهٔ سا مـا ن وآلات برای بعضی پروژه ها امد اد پولـی بمنظور ترجمه چاپ ونشر آثار مهم افغا نی ویونسکو وهکذا تمویل مصارف نمایند گان افغانی درخارج جهت شمولیت درکنفرا نس ها سیمینارها ورکشاپ های منطقوی و نیمه منطقوی از طرف پر وگرام عادی یونسکـو صورت میگیرد . درسال ۱۳۵۱ بیش از ۳۰ ورکشاپ سیمینار وکنفرانس منطقوی ونیمه منطقوی درساحهٔ فعالیت یونسکو دایرگردیده و تمام مصارف رفت و آمـد ایام اقا مت نمایندگان افغانی درچنین مجالس از طرف یونسکو پرداخته میشود .

**مدیریت عمومی روابط فرهنگی :**

از طریق مدیریت عمومی روابط فرهنگـی وزارت معارف درسال جاری به‌تعداد ۲۳ نفر به المان فرستاده شده‌که ازآنجمله درشـق مسلکی یازده نفر معلما ن مکتب میخا نیکی کابل وکندهار وشش نفر دیگر که‌منجملـه دونفـر ازجملـهٔ فـارغـان صنـوف دواز ده لیسهٔ نجات وسه نفر دیگـر معلمیـن مکتب هو تلداری میباشد به اتحاد جماهیر شوروی اعزام شده وهکذا به‌تعداد ده‌نفر ازمحصلین پولی تخنیك هم غرض تحصیلات عالی بـه اتحاد جماهیر شوروی فرستاده شده ویازده نفر دیگر به‌اضلاغ متحدهٔ امریکا یکنفر بـه

چهارشنبه توسعه بخشید تاهم شهریا ن از فعالیت وطرز پیشبرد کار واقدامات اصلاحی زودتر آگاه شوند .

۳: ښاروالی کابل برای استفاده ازنظریات منورین وروشنفکران واشخاص با تجربه و خبیر این شهر اعلاناتی بنشر سپرده تاایشان بحیث رضاکار درکمیتهٔ های مشور تی نواحی ده‌گانه وکمیتهٔ مشورتی مرکزی ثبت نام‌کنند که این یکی از آرزو های دیرین وبرجستهٔ همشهریان مابوده .

٤ـ کمیتهٔ باصلاحیتی برای نامگذار یجاده هابازار ها وکوچه های شهر ونمبر بند ی آپار تمانها ومنازل ، مغازه هاودکانهای‌که‌این هم یکی از جمله ضروریات عصر وآرزو های دیرین همشهریان میباشد تحت ریاست‌دکتور محمد اکرم رئیس ثقافت‌وزارت خارجه تشکیل گردیده وبکار خود ادامه میدهند .

٥ـترتیب وطرح تشکیلات ښاروالی‌متناسب به‌اقتضاء عصر وطرح لوایح عواید نوا حی و شعبات مرکزی وهکذا لایحه ها وظایف‌شعبات بمنظور انسجام ورهنما یی جریانات اموراداری ومالی که از نگاه نیازمندی ښاروالی بطو ر حتم ایجاب میکرد ضرورت ښاروا لی بود . تشکیلات وبودجه ښاروالی تحت غور و دقت کمیته های منتخب باصلاحیت قرار گرفت .

٦ـ کمیته از ارباب دانش برای پیداکردن مدارك عایداتی تشکیل گردید که به چطور و طرق واز کدام راه ممکن است ښاروا لی محصولات سالانه خود را با باقیات ســال های گذشته از مردم تحصیل وبه عوایــد ښاروالی افزایش بعمل آید .

۷ـ قبلا درنواحی ده‌گانه ومرکز ښاروالی نوکریوال شب و جود داشته و در هروقـت شب‌اگر خداناخواسته واقعهٔ در یکی از مناطق شهر رخدهد تمام مامورین مـوظف از آن مطلع وبصورت فوری در محل واقعه حاضر میشوند .

۸ـچون سرك شهدای صالحین از حصه تانك پطرول شاه شهید علیه‌الرحمه تا جابرـ انصار علیه الرحمه در شهدای صالحین خامه وکم‌عرض بوده واز هر حیث مشکلا تی را برای عبور ومرور عراده جات که‌روزانه‌صدها عراده موتر های لاری وتیزرفتار چندین‌جنازه راه مشایعت مینمایند ببارآورده است .تصمیم گرفته شد ه‌تابه‌پول اعانهٔ همشهریا ن به‌این سرك توسعه بخشیده بعد از تسطیح وپخته کاری اسفلت شود وبه این‌وسیله ازتکالیف ومشکلات مشایعت کنندگان کاسته شود وهم به‌محافظین حضیره ها هدایت داده شد تااز ترددحیوانات در آنجا جلوگیری بعمل آمده و نهال‌هائیکه در آن منطقه‌نمو کرده بتواندغرس نمایند .

۹ـ سابق برین یعنی از یك سال به‌این طرف تمام عمله وموتر های تنظیفا تی‌روغتیا پالها وباغبانان پارك به‌نواحی ده‌گانه تقسیم وبطورپراگنده به‌تنظیف شهروتزئین پارك ها وکنترول مواد ارتزاقی دکانهای سلمانی حمام هاوغیره ازنگاه حفظ الصحه مصروف کاربودند که از آن استفاده لازم بعمل نمی آمد .اقدام نمود تاقوای مذکور دریك محل تمرکز داد ه شود .به‌این منظور تمام عمله وفعله تنظیفاتی نواحی‌ده گانه باقوای تنظیفاتی مرکز وعمله تخریب بصورت دسته جمعی‌دریك نقطه‌عجالتا تحت اداره مدیریت عمومی کار ریاست کار وساختمان جمع واکنون مصروف تنظیف وپاك کردن برف از جاده هاوکوچه های شهر کهنه بوده وبرفهای متراکمه را توسط موتر ها ی لاری به‌خارج شهر انتقال میدهند .روغتیاپال هادسته دسته گروپ بسمت به‌تفتیش اصنا ف مواد خوراکه پرداخته وباغبانان برای‌رسید ن

موسم کرد بستی خیابان بندی ونهالشا نی پارك ها وباغبانان از حالا آمادگی گرفته اند .

۱۰ـ دوایر وموسسات پایتخت که سرحدات مشترکه کار وشهری باښاروالی داشته اند به تعیین حدودکار اقدام و از موسسات مربوط ایفا ی مکلفیت های شان تعقیب وتقاضاگردید.

۱۱ـ پروگرام عاجله کار از لحاظ جمع‌آوری حقوق‌ښاروالی ،تصفیهٔ حقوق ښاروالی بادوایر واشخاص حفظ ومراقبت شهری توسعه تخریبات واصلاح خانه های خود ازطریق عرضهٔ منا زل وزمین به‌کمك موسسات وشرکت ها ی‌منازل تامین سرزمین ومحلا ت تاریخی وکار ها ی زینتی شهر جلوگیری از احتکار زمین‌وتوزیع غیر عادلانه زمین هاگرفتن اعانه وکمك ا ز همشهریان وممالك دوست طرح وترتیب‌شد.

۱۲ـ برای انسجام امور وفراهم نمودن نظم اداری متکی به‌سیستم مالی وحسابی جهت رسیدگی باموره‌ربوط به‌ښاروالی به اسا س فورمه هاولوایح مطروحهٔ جدید وهکذاکنترول قیم ورسیدگی جدی به تطبیق نرخنامه مواد ارتزاقی ورعایت شرایط حفظ الصحه محیطی وتنظیفات وطرح احصائیه صنفی بادر نظر داشت طبقه بندی ونیز بطور بیسابقهٔ ا ز دکانداران صالح وراست کار در جریده بانشر تقدیر بعمل آید .

# خلورم پلان

**الف – دخلورم پلان عمده هدفونه :**

۱– دملی محصول او عایداتو زیات والی دخلکو دښه ژوند دپاره .

۲– دکرهنی چټك انکشاف په دی ترتیبچه افغانستان دکرهنی په هکله مخصوصاً دغنمو په تولیدکی متکی په ځان شی . اود صنایعو اود تادیاتو بیلانس په هکله درشد امکانات برابر شی .

۳– دمعدنی او صنعتی محصولاتو زیاتول– دذخیرو څخه استفاده د صنعتی پروژو تاسیس او انکشاف اود عاطلو او بیکاره صنعتی ظرفیتو په‌کار اچول دصادراتو د تشویق وارداتو تعویض او داستخدام دسطحی دلوړولو دپاره .

۴– ددولت دعواید وزیاتول دقوانینومقرراتو مالی او پولی تدابیرو وضع کولو په وسیله.

۵– دهیواد دورکړی بیلانس تقویه دصادراتو دتشویق اود وارداتو د تعویض او ځینی‌نورو اصلاحی او انکشافی اقدا ماتو په وسیله .

۶– په تدریجی توگه داجتماعی او فرهنگی خدمتونو پراختیا د پوهنی عامی روغتیا او انکشاف محل په ساحه کی .

۷– داسعاری منابعو تقویی په‌هکله دتوریزم پراختیا اود استخدام دسطحی لوړول .

۸– دمواصلاتی خطونو پراختیا د تولید او استهلاك دسیمو د پیوست کولو په وسیله ترڅوچه د موجوده تا سیساتو څخه اعظمی استفاده وشی او دسمی دمارکیټونو او اجتماعی خدماتو انکشاف تامین شی .

۹– دبین‌المللی مخابراتو د پراختیا په منظور اود هیواد په داخل کی دمخابراتی مشکلاتو دلری کولو دپاره دمخابراتی چارو انکشاف .

۱۰– داسعاری ذخایرو تقویه او دلمړنی موادو دقیمت ساتنه دیوی بانکی او پولی سالمی رویی په وسیله او دانکشافی اوتولیدی فعالیتونه دتقویی دپاره ډیر بانکی اوکریدټی تسهیلات برابرول .

۱۱– دزراعتی او صنعتی بانکونو پراختیا او تقویه اود زراعتی اوصنعتی بانکونو انکشاف په‌هکله تسهیلات برابرول .

دذکر شوو کیفی هدفونو په نظرکی لرلو سره دخلورم پلان عمده کمی هدفونه په‌لاندی ډول په نظرکښی نیول شوی‌دی :

۱– دمحصول زیا تول د خلورم پلان په اوږدوکی ۰ر۲۵ په‌سلوکی اود منځنی‌ړولوالی ۰ر۵ په‌کال کښی .

۲– دخلورم پلان په اوږدوکی خالص‌دکرهنی محصولات په سلوکی ۲۱ اود منځنی‌لوړوالی په‌نظرکی در لودلو سره په سلوکی ۲ر٤ په کال کی .

۳– بیله لاسی صنایعو څخه د خالص‌صنعتی محصولاتو لوړ والی د خلورم پلان په‌اوږدوکی ۲ر۶ چنده اود منځنی لوړ والی په نظرکی درلودلو سره په‌سلوکی ۰ر۳۲ په‌کال‌کی .

٤– دیوه نفر خالص عوایدو د زیاتوالی په خلورم پلان‌کی په سلوکی ۵ر۱۲ مگر په‌هغه صورت کی چه دنفوس زیاتوالی ددریم پلان‌په اندازه ۳ر۲ په سلوکی باقی پاته شی .

**ب– دخلورم پلان هدفونوته درسیدو په هکله لاری چاری :**

دخلورم پلان هد فونو ته رسیدو دپاره اساسی مقصد اقتصادی داخلی منابعو ته «مخصوصاً مالی منابع» حرکت ورکول دی‌ترڅو چه دهغو په اساس دیوی خواڅخه دملی‌عوایدو او استخدام سویه لوړه شی او دبلی خواڅخه دافغانستان اقتصادی موقف ټینگ شی .دذکر شویو عمده مقصد و په رڼاکی دخلورم پلان هدفونوته د رسیدو په هکله لاندنی تدابیر نیول شوی دی .

**په‌مالی ساحه کی :**

۱– دمالیاتو او عوایدو دټولولو په سیستم کی‌دکیفیت لوړولو په مقصد اداری اصلاحات صورت نیسی .

۲– دمالیاتو د قوانینو د تطبیق په ساحه کی داسی اقدامات تعمیم او تنظیمیږی چه

ټول اشخاص او موسسات خپل مالیات پوره او په وخت سره تادیه کړی .

۳ـ څرنګه چه دځینی فابریکو د تولیدی اشیا د خرڅلاو څخه لکه دسمنتو نباتی غوړو او نخی ټوکرانو څخه مالیه اخیستله کیږی همداشانی به دنورو تولیداتو لکه پشمی او سندی منسوجاتو او بو ټونو او نور شیانو څخه هم مالیه واخیستله شی .

٤ـ په اوسنی شرایطو کی یوه مهمه عایداتی منبع دمځکو مالیات دی . مګر دغه ډول مالیه چه ددی مدرك څخه لاس ته راځی ٥ر۰ په سلوکی د مځکی لرونکو خلکو خالص عواید تشکیلوی . لدی کبله د مځکی مالیه په نوی قانونکی ښه مطلوبه مترقی اود اجتماعی عدالت پر اساس به وضع شی . همداشانی دمواشی مالیه دافغانستان داقتصادی ساختمان سره یووالی لری اود دولت د سالمو عوایدو څخه شمیرل کیږی . په څلورم پلانکی به مواشی مالیه احیاشی اود مجوزه معیار سره به تطبیق شی .

٥ـ دغیر مستقیم مالیاتو دعوایدو دلوړوالی په هکله به دګمرکی تعرفو او وار داتی شیانو دقیمت ایښولو په ساحه کی نوی کتنه وشی.

٦ـ دخارجی نمایندګیو او اجنسیو څخه به مالیه واخیستله شی .

۷ـ دڅلورم پلان په اوږدوکی به ٤٨ زره هکتاره ځمکه دکرهنی دپاره آماده شی اوددی ځمکی دخر څلاو او توزیع دپاره به جدی اقدامات وشی .

۸ـ په څلورم پلانکی به د تجارتی دوران دګټو مالیات له ۷ فیصدو څخه ۱۰ فیصدو ته زیاته شی .

۹ـ دتخمینی سنجش له مخی هغه اندازه سامان اوآلات چه دتیر شویو پلانو په دوران کی ځینی موسسو او بعضی انکشافی پروژو وارد کړی دی داستفادی وړدی لدی کبله چه د څلورم پلان مالی بنیه تقویه شی او په اسعاری ساحه کی موځه سیما کړی وی تر ممکن هده پوری به دنوموړو ماشینو او آلاتو څخه دځینی انکشافی پروژو به تطبیق کی استفاده وشی او یوه اندازه به ئی خر څلاوته آماده شی ددی مقصد و ترسو کولو په لړکی به مشخص پروګرام وضع شی .

۱۰ـ په څلورم پلان کی دځینی معدنونو څخه تجارتی استخراج په نظرکی نیول شوی دی او ددی معدنیاتو محصول د خر څلاو دپاره به په خارج کی دبازار پیدا کولو کوښښ وشی .

۱۱ـ په دریم او څلورم پلانکی د ملاحظی وړ پیسی به دولتی تصدیو کی سرمایه ګذاری شوی دی اووبه شی . د پخوانیو پانګودجبران په هکله به لازم اصلاحات او نوموړو تصدیو داقتصادی کولوپه لړکی به مهم فعالیتونه منځ ته راشی ترڅو چه مستقیمی او غیر مستقیمی سب سایدی لدی مو سساتو سره په تدریج سره لږشی او ددی تصدی ګانو نقش ددولت په عوایدوکی چټك شی ـ ددی ملاحظی پر اساس به دبرښنا د تعرفی په ترکیب کی نوی کتنه وشی او په صنعت او کرهنی کی به د استفادی دپاره یو لړ ملاحظات به نظرکی ونیول شی .

۱۲ـ په اوسنی حالت کی ځینی تصدی ګانی لکه هوټلونه او داسی نور په اقتصادی توګه فعالیت نشی کولای لدی کبله چه لدی څخه ښه استفاده وشی کوښښ به وشی چه ددی موسسو نواقص اصلاح شی که نه نو په دوهمه مرحله کی به یا په اجاره ورکړی شی. اویابه دخر څلاو دپاره آماده شی ترڅو چه دبی ځایه ضایعاتو څخه موجلو ګیری کړی وی.

۱۳ـ د ځینی لری او نږدی هیوادونو په تناسب په افغانستان کی دپټرولو او ددیزلو دبیی دټیټوالی له امله او ددولت له خوا د مواصلاتو او حملو نقل په برخه کی په زړه پوری پانګی اچولو له کبله په تیرو پلانونوکی دحملو نقل دتمامی شوی بیی د را ټیټوالی سبب ګرځیدلی . په څلورم پلانکی دپټرولو او ډیزلو بیه په ډیره ټیټه اندازه یعنی یوه افغانی په یوه لیترکی زیاتوالی په نظرکی نیول شوی دی .

۱٤ـ ددولتی صنعتی تاسیساتو د معیار لوړولو او ښی استفادی کولو په هکله ځینی

تدابیر نیول او دموسساتو دکامل ظرفیت څخه پهښه توګه استفاده کول .

۱۵ـ دبودجې دکسر له لیاری تمویل‌دمنلو وړ لارده په څلورم پلان‌کی دداخلی عوایدو او لګښت د تفاوت د جبران له‌پاره به لدی‌لاری نه‌په محدوده توګه اوله وروستنی کوښښ‌ونه وروسته دداخلی منابعو دلا ستنه راوړلو په منظور استفاده وشی .

۱٦ـ داستهلاکی موادو پورچه دبیودنسبی استقرار دداخلی پیسو تـهیه او اړتـیا وړ وارداتو تر لاسه کولو مقصدونه به تـرسره کړی دتمویل بله لاره بلله کیږی . په‌څلورم پلان‌کی به هڅه وشی چه داستهلاکـی موادو دخرڅلاو عایدات ددی سبب وګرځی چه‌دداخلی مدرکونو له لاری دمنابعو تر لاسه کول چه‌ډېر خپل ځان اتکا د پالیسی حتمی جزدی کمزوری شی نو ځکه به‌په څلورم پلان‌کی عوایدو په داسی ډول اصلاح شی او پراختیا و موی چه‌په استهلاکی موادو اتکا داخلی عوایدو د بدلیدلو او دتولیدی بنیی د کمزوری کیدلـو سبب ونه‌ګرځی .

۱۷ـ دڅلورم پلان دانکشافی پروګرام‌په تمویل کی خارجی پوروته اساسی نقش لری کوښښ به وشی چه دخارجی قرض څخه د مؤلده او اقتصادی پروژو په تمویل کــی استفاده وشی ترڅو چه عواید او تولیدزیات شی او بیرته داصلی قرض تادیه او تـکت پولی په آسانی سره میسر شی . دخارجـی پورو دبیرته ورکړی پروګرام په هکله به‌له خارجی موسسه ورکونکو منابعو سره مفاهمه وشی ترڅو چه خپله قرضه په داسی شرایطو واخلی چه دافغا نستان دتوان او قدرت سره سمون وخوری او انکشافی پرو ګرامونه د مشکلاتو سره مخامخ نه‌شی .

دشوری دډیرو همکاریو د جلبولو په‌وسیله دخارجی پوروتو دقانونی مراحلو دتیرولو پــه هکله مؤثری لاری چاری لټول کیږی .

**دورکړی دبیلانس په ساحه کی :**

په څلورم پلان کی به ډیرکوښښ وشی ترڅو چه دهیواد اسعاری عواید دصادراتواو توریزم د تشویق او دوارداتو د تعویض د پروګراو دطرحی او تطبیق په وسیله زیات شی . د صادراتو د تشویق په پروګرام‌کــی لاندنی ملاحظی شته .

۱ـ دکرهنی په پروګرام باندی زوراچول ترڅو چه دصادراتو د زیاتوالی او دخوراکی موادو دوارداتو په هکله بدلون راشی او د صادراتود یوه واحد بیه دکیفیت دکنترول‌بسته بندی ـاو دبازار د تحقیقاتو په وسیله زیات شی .

۲ـ دافغانستان د صادراتی موادو داعمال (پروسس) دامکاناتو پراختیا ترڅو چه‌په دی اساس دیوی‌خوا څخه زمینه دصادراتودخرڅلاو دپاره مهیاشی اودبلی خوا دملی تولیداتو په بیه‌کی زیات والی راشی .

۳ـ صادرکوونکو ته دپوره یادیوی مساعدی اسعاری بیی ورکول .

٤ـ دصادروونکو دپاره د تخنیکی معلوماتو تهیه‌کول او ددوی دپاره یو مساعد بازارپیدا کول اودداسی موسسی تاسیس کـول چــه‌د صادراتو دتشویق پروګرام عملی کړی .

٥ـ په اسعاری عوایدوکی دزیات والی‌په هکله به‌د صادراتو په حجم‌کی زیاتوالی راشی اود غیر مرئی عوایدو په برخه‌کی به‌دسیاحینو دجلبولو دپاره موثر اقدامات وشی .

٦ـ د اسعاری عوایدو دزیاتوالی د پالیسی سره یـوځای بـه دغیـر ضروری اسعاری مصارفو لیږول او دوارداتو دتحدید پالیسی بههم تعقیب شی . دهغو صنایعو تاسیس‌او پراختیا چـه دوارداتـو دبدلون او اسعاری صرفه جوئی سبب ګرځی دورکړی دبیلانس‌په تقویه‌کی به‌ستر نقش ولوبیوی .

۷ـ دګمرکی تعرفی د سیستم اودوارداتی شیانو دقیمت ایښولو ډو ل به‌تغییر ورکړی ترڅوچه له یوی خوا دوارداتی شیانو محصول داسعاری نرخ سره سمون وخوری اودبلی‌خوا مالیات په وارداتو داقتصادی انکشاف دپاره مهمه وسیله وګڼل شی اود وارداتو دتحدید او داخلی صنا یعو د تقویی په هکله موثر واقع شی .

**دبانګداری او پیسو په برخه کی :**

دداخلی‌منابعو دکمبوداودفیست‌فینانس څخه‌زیاته استفادی دروش په نتیجه کی دسر مایه‌ګذاری

پروګرام په تیر شویو پلانونو کی دمرکزی بانك څخه دملاحظی وړ استقراض صورت میندلی دی داروش ددی سبب شوچه دافغانی پیسو بیه دخارجی اسعارو په مقابل کښی ټیټه او د قیمتونو سویه جګه شی . دڅلورم پلان یومهم هدف دادی چه افغانی پیسی دخارجی اسعارو په مقابل کی استقرار پیدا کړی .

نوله دی کبله په څلورم پلان کی دضرورت په وخت دمرکزی بانك دپور څخه په محدوده توګه او ترهغه اندازی استفاده وشی چه د اقتصادی پرمختګ په ګټه وی .

**پانګی اچولو په برخه کی :**

د منابعو تـوزیـع د اقتصادی انکشاف یوه ستراتیژی کـنـټـرول کیږی په هغه اندازه چه دمنابعو حصول مـهم دی همدا شان دپلان هدفونه هم د منابعو د ښه توزیع په چوکات کی تامین کیدای شی .

دملی اقتصاد له نظره دپخوانیو سر مایه ګذاریو دموثریت سویه ځکه ټیټه ده چه له دی سرمایه ګذاریو څخه په ښه توګه استفاده نه ده شوی . چه داخبره زیاتره د صنایعو پـه سکتور او دولتی تصدیو کی چه په هغو کی عاطل ظرفیتونه زیات موجود دی صدق کوی .

دڅلورم پلان په اوږدو کی دپانګی اچولو لاری چاری په لاندی ډول دی :

۱ـ دملی قدامت له مخی کرهنه پـه اولـه مرحله کی واقع ده چه په سلو کی ۳۸ر۹ دڅلورم پلان منابع به جذب کړی .

۲ـ په څلورم پلان کی هغو پروژو ته قدامت ورکول کیږی چه زر په ثمر راځی او په خو محدودو کلو کی په تولیداتو پیل وکړی . همداشانی یو تعداد داسی پروژی په دی پلان کی شاملی دی چه زر په ثمر نه راځی خـود مصرف او عایدی تناسب په دی پروژو کی ډیر مساعد دی یو تعداد انتقالی پروژی چه په دی مرحله کی غیر مولد نه دی د پخوانیو پلانو څخه څلورم پلان ته رانقل کیږی . ځکه چه یوه زیاته اندازه پیسی په دی پروژو کی مصرف شوی دی نو ځکه ددی منابعو او پروژو د ضیاع څخه دجلو ګیری په مقصد دمالی توان سره سم به دوام وکړی او ددی پروژو مولد و برخو ته به قدامت ورکړ شی .

۳ـ هغه پروژی به وځنډول شی چه عاطل او بیکاره ظرفیتونه ایجادوی او فایده اخیستل له هغی څخه زیات وخت نیسی .

٤ـ ترهغه ځایه چه مقدور وی داقتصادی او تخنیکی مطالعاتو څخه وروسته او کله چه ددی پروژو اقتصادی ښه څرګنده شی د تطبیق وړ به وګرځی او دهغو پروژو دتطبیق مخه بـه ونیوله شی چه یواځی پرستیژی جنبی لری او دهغو نسبی برخه داقتصاد په پرمختګ کی لـږوی .

٥ـ ددی دپاره چه په څلورم او آینده پلانو کی یو تعداد سالمی پروژی منځ ته راشی داسی یوه موسسه به تاسیس شی چه ددی پروژو په مطالعه کولوکـی وظیـفه ولـری اوددقیقو مطالعاتو څخه وروسته به دڅلورم پلان په اوږدو کی په کار پیل وکړی .

٦ـ دخصوصی سکتور سرمایه ګذاری بـه ترممکنه حده پوری تشویق شی او داپالیسی درهبری شوی اقتصاد دعمومی پالیسی سره چه دهغه په اساس خصوصی صنایع حق لری په معینو برخوکی پانګه وا چـوی مـطابقت کوی .

۷ـ ددی دپاره چه دورکړی پـر بیـلانس باندی لږ فشار راشی او دأستخدام سطحه لوړه شی په څلورم پلان کی به دپانګی پرځای دبشری طاقت څخه ډیره استفاده وشی اوددی مامول دتر سره کولو په هـکله به جـدی اقدامات وشی .

**دکرهنی په برخه کی :**

۱ـ دکرهنی په برخه کی دسرمایه ګذاری اساسی هدف دادی چه نوموړی پانګی زراعتی محصولات او عواید زیات کړی اوافغانستان مخصوصاً دغنمو په برخه کـی متکی پرځـان وګرځوی .

۲ـ دی هدف ته درسیدو دپاره یوه مهمه او اساسی چاره دکرهنی (ترویج او پراختیا) اود محلاتو د انکشافی پروګرامو تطبیقول دی. د سیمی دانکشاف پروګرام دمحلی کارونو د اصول پربنسټ استوار دی او داهیله شته چه داپروګرام به داستخدام تـولید او فردی عایداتو باندی مثبت تاثیر ولری .

۳ـ په هغه صورت کی چه د کرهنی په هکله

هدفونه عملي شي دا امکان شته‌چه د غنموبیه تیته اودتولید دزیاتي پـراختیا په صورت کي ددي متاع مولدين متضرره شي . نوځکه په‌څلورم پلان‌کي دغنمو تیته بیه تثبیت اود اخیستلو او توزیع میکانسم ددولت په‌وسیله تطبیق کیږي . علاوه پردي دکرهني متنوع کول او دځیني تعويض توليدأتو لکه میوه‌جات سبزيجات او داسي نوربه تقویه شي .

٤ـ ددی دپاره چه دکرهني هدفونه دڅلورم پلان دپیشبیني سره سم عملـي شي بـايـد اقتصادي منابع په داسي پروګرامو او سیمو کي توزیع شي چه داوچتي أوفوري ودي‌امکانات ولري . دپروګرام سره سم به دهغو دنسبي ودي دپاره لاري چاري ولټول شي اوکیمیاوي سره،اصلاح شوي تخم‌اونور وسایل تهیه‌شي چه‌ددي پروګرام په‌بنه أجراکولوکي‌برخه‌واخلي دکرهني په پراختیا کي د«تر ويج پروګرام» داساسي زير بنا حیثیت لر ي . ټول زراعتي توليدات مخصوصاً پمبه أو میوه جات دپروګرام په‌چوکات کي زیاتوالی مومي ترڅوچه ديوي خواڅخه دوری کړي بیلانس تقویه کړي اود بلي خوا دصنايعو دبیکاره ظرفيتونو په‌کـار اچولوکي مؤثر واقع شي .

٥ـ دځنګلونو علفچرونو کوپراتيف أوداوبو نبي ستفادي په هکله به مربوطه قوانين طرح او تطبیق شي .

٦ـ کريدټي موسسات مخصو صاً دکرهني بانك به‌د متممه قوانينو او مقرراتو په وسیله تقويه‌شي .علاوه پردي دبانك کريدټي‌فعالیتونه به‌دبانك دڅانګو دپراختیا په وسیله انکشاف وکړي . دکو پراتیفونو تاسیس أو دکرهني‌په برخه‌کي نور تشکيلات به دا امکانات برابرکړي چه‌د زراعتي بانك له پورونو څخه شه‌استفاده وشي .

٧ـ داوبو لګولو هغه پروژي چه‌د پخوانیو پلانونو څخه ودي پلان ته انتقال پیدا کړيدي بشپړي به شي په‌عين حال‌کي به‌کوښښ وشي هغه پیشبیني شوي پانګي به ددي پروژو په مؤلد وبرخه کي تمرکز پیدا کړي او دګټي اخیستلو وخت په دي پروژوکي تسریع‌شي.

داوبو لګولو موجوده سیستمونه اودکوچني بندونو جوړول داوبو دذخيرو او تنظیم‌دپاره اود أوبو اوسیل تخریب څخه دمخنوي دپاره پر موجوده مځکو باندي يولړ اقدامات کیږي اود خلکو دهمکاري څخه به هم استفاده‌وشي.

٨ـ دعلفچرونو داصلاح او تجهيز دحمایوي فعالیتو توسعه . أود حیواناتو د نسل اصلاح او تکثير پراګرامونه به‌تطبیق شي .

دکرهني دمځکي سروي دکارتو ګرافي‌نقشو پرمخ اود نباتي فروش پروګرام په څلورم پلان‌کي نهايي مرحلي ته رسیږي .

**دصنايعو په ساحه‌کي :**

١ـ دصنايعو دسکتور تقويه اود صنعتي توليدأتو دبرخي ډيروالي په ملي عوايدوکي دافغانستان په اقتصادکي ديوي بنياني تغيير حیثیت لري . دصنايعو سکتور چه دپانـګي اچولوپه پرو ګرام کي ٤ر٣٥ په سلوکي برخه لري داهمیت وړدي . دصنايعو دانکشاف په برخه کي دتولیداتو د سطحي دلوړولو او کفايت ډير مهم اصل دی نوځکه په‌څلورم پلان کي تاکید کیږي چه ددولت توليدي موسسي أو تصدی ګاني چه دافغانستان دصنايعو د انکشاف او اقتصاد په برخه کي مهم‌نقش‌لري داسي تشکيل شي چه وکولای شي دعوايدو او مالي منابعو پـه برخه‌کـي مهمه بـرخـه واخلي .

٢ـ په خصوصي سکتورکي دصنعتي فعالیتو انکشاف دپاره مخصوصاً دصادراتي صنايعو اد وارداتو د بدلولو په بـرخه‌کـي د تشويقـي وسیلو څخه استفاده وشي. مګربیاهم دصنايعو پروګرام په عام‌ډول او خصوصي صنايع پـه خاص ډول دلاندي اصولو په رڼاکي به‌رهبري شي .

الف‌ـ صنعتي پروژي بايد داقتصاد له‌مخي مساعدي وي ترڅوچه توليدأت ئي ديوه معين وخـت‌نه وروسته دوارداتـو سره رقا بـت وکولای شي .

ب‌ـ په اوسني مرحله‌کي هغو صنايعو ته قدامت ورکول کیږي چه ديوي زياتي اندازي داخلي اومه مواد أوداخلي بشري مواد څخه اعظمي استفاده کوي .

٣ـ صنعتي بانك خصوصي پانګو اچوونکو

تەدصنعتی پروژو دودانولو دپاره په مناسبه توگه پور ورکوی او پدی ترتیب سره بەد تولیدی فعالیتو دپراختیا دپاره بنه زمینه برابره شی .

**دمعادن په برخەکی :**

دمعدن دسکتور اساسی هدف د معدنیمنابعو دبرخی زیاتوالی په اقتصادی پر مختگ کوی. څلورم پلان تاکید کوی چه دمعدن پروگرام پەاوله مرحلەکی دمعدن د تجارتی ذخایرو د تثبیت او استخراج په هکله ځای پرځایشی. دذخایرو اقتصادی حجم او ارزش ته کتنەلاندی ونیول شی اود اقتصادی استخراج مکمل پلان وضع شی ترڅوچه د جامدو ، مایعو او گاز منابعو استخراج او لټولو شرایط اوچاریپه افغانستانکی چټك تیا ومومی . ددولت معدنی تصدی وظیفه لری چه دمفیدیت او مطلوبیت سویه په تفحصاتی برخوکی زیات کړی .

**دبرښنا دانرژی پەبرخەکی :**

۱ـ دتولید او تقاضا په برخەکی دیوه توازن برقرارول اود توزیع او انتقال پەبرخەکی تسهیلات فراهم کول .

۲ دبرښنا دتولید او خدماتو پراختیا درشد او انکشاف پەوړ ساحوکی .

۳ـ دبرښنا داداری دطرز اصلاح کولترڅو چەپدی وسیله نوموړی موسسی دمالی منابعو لەمخی داقتصاد په انکشافکی فعاله برخه واخلی داکار به اداری او تخنیکی او دبرښنا دمحصول دراټولو دبنه سیستم اود برښنا په تعـرفوکښی دبدلون را وستلو په وسیله عملی شی .

دبرښنا دتعرفی دبدلون مربوطه اقدامات ددی ستر عامل استعمال به دصنعت اوکرهنی په ساحوکښی پەنظر ونیسی .

٤ـ څرنگه چه دبرښنا صنایع دزیر بنا په حیث داقتصاد او صنایعو درشد په برخەکی شمیرل کیږی او دبرښنا غوښتنه هم ورځ په ورځ زیاتیږی ددی کبله چه دصنایعدانکشاف سرعت په څلورم پلان اود راتلونکو پلانونوپه شروعکی دمشکلاتو سره مخامخ نشیبه څلورم پلانکی دبرښنا زیاتوالی ته زیات اهمیت ورکړ شوی دی .

**داجتماعی خدماتو پەساحەکی :**

دڅلورم پلان سترا تیږی داجتماعی خدماتو دسکتور په برخەکی دروغتیا او عرفانی مسایلو دمتوازن تسهیلاتو فراهم کول د هیواد دټولو او سیدونکو دپاره دی . دی هدف تەدرسیدو دپاره باید عرفانی او صحی پلانونه دپنځەکلو څخه زیات وخت په نظرکی ونیسی ترڅوچه نوموړی تسهیلات دسیمی داحتیاجاتو سره متناسب او دوگړو دشمیر سره مساوی تأمین شی . دتوازن ایجاد دا معنی نه ورکوی چه دتسهیلاتو فوری رشد دی په هغو سیموکی چه نسبتاً انکشاف ئی کړی دی بندکړی شی بلکه داسی معنی ورکوی او اساسی هدف دادی چه اجتماعی تسهیلات دی په هغو سیمو کیچه لږ انکشاف ئیکړی دی پەلوړ ضریب سره تسریع کړی شی .

**الفـ دپوهنی پەبرخه کی :**

دابتدائی زدەکړی په برخەکی دکمیت پراختیا ته اهمیت زیاد ورکول کیږی اودمالی توان او زده کړی دوسایلو په تناسبدزده کړی او روزنی کیفیت هم بنەکیږی . د ښوونځیو ویش دسیمو دوگړو دشمیر سره متناسب صورت نیسی اود امکان سره سم بەدتعلیم کیفیت تەهم توجه وشی .

د مسلکی تعلیم په برخه کی اود ثانوی دوهمی دوری په برخەکی دبشری قواوو ضرورت په اوسنی مرحلیکی دتوازن د هدف سره سم له اوسه ترنظرلانـدی دی. اوسنی ښوونځی به دښوونکی او نورو تجهیزاتولەمخی مجهزکړی شی ترڅو چه دهغو په اساس د تعلیم او تربیی کیفیت لوړ کړی شی .

ددی دوری دجدیدالشمولانـو شمیر بەد قوت د ضرورت سره سم هـغەچه په دی سویه وی او یا په عالی سویو وی ددیکبله چه دبیکاره تعلیم یافتەگانو دانرژی دضایـع کولو څخه موجلوگیری کړی وی عیارکیږی.

علاوه پردی د مسلکی تعلیماتو عملی جنبو ته بەڅلورم پلان کی زیاته توجه کیږیترڅو چه عملی ژوند کی دمسلکی تعلیم یافتەگانو څخه په ښه صورت استفاده وشی .پەڅلورم پلانکی دپوهنی دپرابلم اساسی چاره اودتعلیم اوتربیی په برخەکی دبشریقوتونو داحتیاجاتو سره سم یو کمیسیون ته چەزیات صلاحیت

سره داسي توحيد شوى دىچه سرکودجوړښت پهساحهکي اعظمينتايج مينځته راولي .

**دمخابراتو په برخهکي :**

دمخابراتي شبکي پراختيا او اصلاح به ديوه اساسي پر نسيب په حيث بايد دکـرهنيد سکتور صنايع ، تجارت اوداسي نور فعاليتونه چه دشيانو دتوليد او توزيع سره ارتباط لري منطقي همبستگي ولري . ترهغه ځايهچهامکان لري دمخابراتو سکتور د تمويل لهلاري بايد پهځان باندي متکي وى . دى هدفته درسيدو دپاره په څلورم پلانکي دپستي او مخابراتي خدماتو دمؤثريت اندازهبه لوړه شياودپخوانيو پانگي اچولو عوايد به دمخابراتو په ساحهکي زيات شي .

دتيلفون دعوايدو دښهراټولولو اودحسابداري دعصري سيستم معرفي دمخابراتو په برخهکي زيات اهميت لري .دمهمو هدفونو څخهيوهدف دادى چه مخابراتي شرايط او تسهيلات داسي مينځته راشي چه دافـغانستان روابط د نورو هيوادو دمخابراتي عصري سيستم لـه لاري تأمين کړى .

**دسيمي دانکشاف په برخهکي :**

داقتصادي وروسته پاتـي سيمو او نسبتاً پرمخ تللـيو سيمو دخلا دډيريدو دمخنوى پـا غرض چهدجغرافيائي نامساعد موقعيتاقتصادي محدود منابعو او نـورو طبيعي او اجتماعـي عواملو په أثر منځته راغلي سيمه ئيزىپراختيا پروگرام به دپکتيا او کنړ په ولايتونو کښي ادامه پيدا کړى او نورو سيمو ته لکه مرکزى ولايات نيمروز ، بدخشان ، او نوروولاياتوته پراختيا ومومي . دسيمي دپراختيا دپروگرام سرهبه يوځاى کوچني عامالمنفعه اقتصادي او اجتماعي پروژى جوړول دسيمي دپراختيا لـه لياري په ټولو ولاياتو کښي عملي شي .

دسيمي پراختيا د سياست هدف په نهايي مرحلهکښي ديوه سالم او مطلوب سيمه ئيز اقتصادي بنسټ جوړولو څخه عبارت دىهڅه کيږى چه دتوليد عوامل پهټولو سيمو کښي داقتصادي عمومي پراختيا په غـرض تجهيز شي .

داقتصادي او اجتماعي پراختيا پلان گذاري داسي يوروش د ى چـه دهغه پـه ذريعه أفغانستان کښي دپر مختگ اهـداف طـرح کيږى اود منابعو د حصول او ويش اود هغه څخه استفادى اساسات وضع کيږى .پهڅلورم پلان کښي دپروژو دښي ارزيابـي په غـرض کلني پلانونه د پنځه کلن پلان په چوکات کښي طرح او تدوينيږى .

کلني پلانونه بهپلان گذا رانو ته فرصت ورکړى ترڅو چه ډيرنوى معلومات پهنظرکښي ونيسي أوپلان پريوه تازه او واقعي بنسټ ودروى .واقعي پلان گذارى په هغه صورت کښي ميسريداى شي چـه د عمده اقتصادي متغيرو دتحول اود پرمختگ دڅرنگوالي پهباره کښي ملي عايد نفوس سپما پانگه اچول ملي مصارف او نورو متحولو پـهبارهکښي مستند معلومات پهلاسکښي وى . ترڅو داوضاعاو شرايطو پر اساس پنځهکلن او کلني پلانونه طرح شي .

داساسي احصائيي نشتوالي داقتصاديوضعي دارزيابي او علمي پلانونو په طرح کولوکـي لويه مانع گڼل کيږى . نوله دى کـبله پـه څلورم پلان کښي بهداحصائيي يو مرکزىدفتر تاسيس شيچه لهيوى خوابه ددائيرواحصائيوى فعاليتوته هم آهنگي ورکړى او له بلي خوابه دنفوسو ملي عايد زراعتي او صنعتي بشرى قوااوو او نورو اساسي احصائيـي منـځ تـه راوړى .

دانکشافي پروژو دتطبيق په زمينه کښي يواساسي عامل دپروژو اقتصادي او تخنيکي مطالعات دى چهله بده مرغه تراوسه پورى دپروژو جوړولو ټول فعاليت او دهغو دتخنيکي او اقتصادي معلومات تهيه کولد تخنيـکي مرستو لهلياري او دخارجي پورونو له لياري دخارجي افرادو په ذريعه صورت نيسي.ددى دپاره چه دپروژو دجوړولو قابليت اود پروژى مطالعه په افغانستان کښي پراختيا و مو مي پهڅلورم پلانکښي دپروژى جـوړولو مرکـز دائيريږى . داکار به لهيوى خـوا دخارجـي إسعارو صرفه جوئي سبب شي اوله بلي خوا بهپه آينده کښي دانکشافي پروژو دچټک او موفقيت آميز تطبيق موجب وگرځي .

سره داسې توحید شوی دی چه سرکودجوړښت پهساحه کی اعظمی نتایج مینځته راولی .

**دمخابراتو په برخه کی :**

دمخابراتی شبکی پراختیا او اصلاح به دیوه اساسی پر نسیب په حیث باید دکرهنی د سکتور صنایع ، تجارت اوداسی نور فعالیتونه چه دشیانو دتولید او توزیع سره ارتباط لری منطقی همبستگی ولری . ترهغه ځایه چه امکان لری دمخابراتو سکتور د تمویل لهلاری باید پهځان باندی متکی وی . دی هدف ته درسیدو دپاره په څلورم پلان کی دپستی او مخابراتی خدماتو دمؤثریت اندازه به لوړه شی اودپخوانیو پانگی اچولو عواید به دمخابراتو په ساحه کی زیات شی .

دتیلفون دعوایدو دښهراتلولو اودحسابداری دعصری سیستم معرفی دمخابراتو په برخه کی زیات اهمیت لری .دمهمو هدفونو څخه یوهدف دادی چه مخابراتی شرایط او تسهیلات داسی مینځته راشی چه دافغانستان روابط د نورو هیوادو دمخابراتی عصری سیستم له لاری تأمین کړی .

**دسیمی دانکشاف په برخه کی :**

داقتصادی وروسته پاتی سیمو او نسبتاً پرمخ تللیو سیمو دخلا دډیریدو دمخنوی په غرض چهدجغرافیائی نامساعد موقعیت اقتصادی محدود منابعو او نورو طبیعی او اجتماعی عواملو په أثر منځته راغلی سیمه ئیزی پراختیا پروگرام به دپکتیا او کنړ په ولایتونو کښی ادامه پیدا کړی او نورو سیمو ته لکه مرکزی ولایات نیمروز ، بدخشان ، او نوروولایاتوته پراختیا ومومی . دسیمی دپراختیا دپروگرام سرهبه یوځای کوچنی عام‌المنفعه اقتصادی او اجتماعی پروژی جوړول دسیمی دپراختیا له لیاری په ټولو ولایاتو کښی عملی شی .

دسیمی پراختیا د سیاست هدف په نهایی مرحله‌کښی دیوه سالم او مطلوب سیمه ئیز اقتصادی بنسټ جوړولو څخه عبارت دیهغه کیږی چه دتولید عوامل پهټولو سیمو کښی داقتصادی عمومی پراختیا په غرض تجهیز شی .

داقتصادی او اجتماعی پراختیا پلان گذاری

داسی یوروش د ی چه دهغه په ذریعه أفغانستان کښی دپر مختگ اهداف طرح کیږی اود منابعو د حصول او ویش اود هغه څخه استفادی اساسات وضع کیږی .پهڅلورم پلان کښی دپروژو دښی ارزیابی په غرض کلنی پلانونه د پنځه کلن پلان په چوکات کښی طرح او تدوینیږی .

کلنی پلانونه پهپلان گذا رانو ته فرصت ورکړی ترڅو چه ډیرنوی معلومات پهنظرکښی ونیسی أوپلان پریوه تازه او واقعی بنسټ ودروی .واقعی پلان گذاری په هغه صورت کښی میسریدای شی چه د عمده اقتصادی متغیرو دتحول اود پرمختگ دڅرنگوالی پهباره کښی ملی عاید نفوس سیما پانگه اچول ملی مصارف او نورو متحولو پهبارهکښی مستند معلومات پهلاس‌کښی وی . ترڅو داوضاع‌او شرایطو پر اساس پنځه‌کلن او کلنی پلانونه طرح شی .

داساسی احصائیی نشتوالی داقتصادیوضعی دارزیابی أو علمی پلانونو په طرح کولوکښی لویه مانع گڼل کیږی . نوله دی کبله په څلورم پلان کښی بهداحصائیی یو مرکزیدفتر تاسیس شی‌چه لهیوی خوابه ددائیرواحصائیوی فعالیتونه هم آهنگی ورکړی او له بلی خوابه دنفوسو ملی عاید زراعتی او صنعتی بشری قواوو أو نورو أساسی احصائیی منځ ته راوړی .

دانکشافی پروژو دتطبیق په زمینه کښی یوأساسی عامل دپروژو اقتصادی او تخنیکی مطالعات دی چهله بده مرغه تراوسه پوری دپروژو جوړولو ټول فعالیت او دهغو دتخنیکی أو اقتصادی معلومات تهیه کولد تخنیکی مرستو لهلیاری او دخارجی پورونو له لیاری دخارجی افرادو په ذریعه صورت نیسی.ددی دپاره چه دپروژو دجوړولو قابلیت اود پروژی مطالعه په افغانستان کښی پراختیا و مو می پهڅلورم پلان‌کښی دپروژی جوړولو مرکز دائیریږی . داکار به لهیوی خوا دخارجی إسعارو صرفه جوئی سبب شی اوله بلی خوا بهپه آینده کښی دانکشافی پروژو دچټک او موفقیت آمیز تطبیق موجب وگرځی .

دپلانو دتطبیق پهساحه کښې بهدکـــلنې پلانو دطرحې اوتطبیق نـــه برسیره بودجوی تشکیلات اواداریطرزالعملونه داسېشوچهکلنی بودجهدکلنیسکتوری پلاناودپروگرامونواودهغه پروگرامونو د مشخصو اهـــدافو او فزیـــکی نتایجو سره منطقی ارتباط ولری .

دتخنیکی امداد یو مشخص پروگرام بهدپلان اود هغه دپیشبینی شوو اهدافو د تطبیق په مقصد عملی شی .

وزارتونه او دوائر مکلف دی چه دخپـــلو پروژو مفصل کلنی او د تطبیق او مراقبت پلانونه ترتیب اودکارونو دپر مختگ راپوړونه دمعینو فورمو سره مطابق دپلان وزارت ته راواستوی .

دپلان وزارت دپلان دهم آهنگی او تجدید نظر دپلان دتعدیـــلاتو اود مـــربوطو پـــلانود پرمختگ دارزیابی په هکله مسؤولیت لری اومکلفدی چهدپلاناودهغه دتطبیق دپړوبلمونو پهباره کښې حکومت او اقتصادی عالی شوری ته معلومات تهیه کړی . دمالی او فزیکی له نظره دانکشافی پروژو دښه تطبیق دپاره بـــه انکشافی بودجه ممتد دوری تـــه نهخی بلـــکه دبلکال په احتیاط کښې به علاوه کیږی .او پهدی ترتیب به دا بودجه په انکشافی مدارکو کښې چه مخکښې کال کښې دمعقولو دلایلو پر اساس نوی تطبیق شوی مصرفیږی اوپاد نورو پروژو دمالی بنیی دپیاوړی کیدو دپاره بهاستفاده ور ځنې و شی . همـــدا رنـــگـــه (مورا توریم) او عوایدو د مازاد دوجودوانتقال به دانکشافی احتیاط له لیاری د بودجې او کلنی پلان پههدفوکښې داستفادی وړوگرځی.

دتطبیق یوه لایحه تهیه کیږی چه په هغـــه کښې بهد پروژو دتطبیق هدایت نامی شاملې وی اودپروژو مربوط موضوعات دپروژودتطبیق مسؤولیتونه دپروژو زمانی پروگرام اودراپور ورکولو مؤثر سیستم بهپکښې شامل وی .

### دپلان دمصارفو تمویل اود تادیاتو بیلانس

### اول : مصارف او عواید :

### الف ـــ مصارف :

دڅلورم پلان په چوکاتکی ددولتدسکتور ټول مصارف ٥ر٦١ ملیارد افغانـــی پیشبینی شوی دی . چه ددی جملې څخه ۷۸ر۳۳ملیارد افغانی ددولتي دوایرو عادی مصارف دخارجی پورونو تادیه اود احتیاط او سپسایدی پهکی شاملې دی اونور متباقی ۷ر۲۷ ملیاردافغانی انکشافی مصارفوته تخصیص ورکړ شوی دی لاندینی جدول پهڅلورم پلانکی عادیمصارف ښیی :

« ملیارد افغانی»

| | دریم پلان | څلورم پلان | دڅلورم پلان فیصدیددریم پلان په نسبت |
|---|---|---|---|
| ټول عادی مصارف | ۲۳ر۲ | | |
| د دی جملی څخه د دوایرو | | ۳۳ر۷۸ | ۱٤٥ر٤ |
| عادی مصارف | ۱٦ر۲ | ۲۱ر۱۸ | ۱۳۰ر۳ |
| دخارجی قرضونو تادیه | ٤ر۳ | ۷ر٦۰ | ۱۷۷ر۱ |
| سپسایدی اومتفرقه مصارف | ۲ر۷ | ٥ر۰۰ | ۱۸٥ر۸ |

عادی مصارف چهپه څلورم پلانکی۷۸ر۳۳ملیارد افغانی پیشبینی شوی دی ددریم پلان په نسبت ٤ر٤٥ فیصده وده ارائهکوی.دعادیمصارفو دلوړ والی علت دادیچه نظر دریـــم پلانته اضافه پهڅلورم پلانکی قرضونه تادیهکیږی چهپه څلورم پلانکی دوه چنده تخمین کیدی شی .

د دولتی دوایرو عادی مصارف نظر دریم پلانته ۳ر۳۰ فیصده زیات په څلورم پلانکی تخمین شوی دی . دعادی مصارفو وده بیلهدپوهنی او روغتیا دوزارتو څخه پهکالکی٥ر٤ فیصده ده اود پوهنی او روغتیا دوزارتودعادیمصارفو وده پهسلوکی ۱۰ تخمین شویده .

انکشافی مصارف دخصوصی پانگی پهشمول۹۳ر۳۰ ملیارد افغانی په نظرکی نیول شوی او دهیواد په اقتصادی او اجتما عـــی عمدهسکتورونو کی په لاندی ډول تخصیص کـــړی شوی ده :

« ملیارد افغانی »

| | دریم پلان دپانګی اچول | په‌سلوکی | خلورم‌پلان دپانګی‌اچول | په‌سلوکی | دخلورم پلان فیصدی نظرو دریم‌پلان‌ته |
|---|---|---|---|---|---|
| دکرهنی‌اواوبولګولو | ٦٣ر٦ | ٣٣ر٠ | ١٨ر١٠ | ٣٥ر٠ | ١٦٢ |
| صنا یــع | ٨٥ر٥ | ٢٨ر٠ | ٩٠ر٨٠ | ٣١ر٧ | ١٦٧ |
| ترانسپورت‌اومخابرات | ٢٧ر٢ | ١١ر٠ | ٣ر٣٧ | ١٠ر٩ | ١٤٨ |
| په‌ټولو برخوکی | ٠ر٨٩ | ٤ر٠ | — | — | — |
| دخصوصی پانګی‌اچول | ٧٠ر١ | ٨ر٠ | ٣ر٢٠ | ١٠ر٣ | ١٨٨ |
| احتیاطــی | — | — | ٠ر٨٦ | ٢ر٧ | — |
| ټوله سرمایه ګذاری | ٢٠ر٧٢ | ١٠٠ر٠ | ٣٠ر٩٣ | ١٠٠ر٠ | ١٤٩ |

څرنګه چه پورتنی جدول ښیی د خصوصی‌پانګی اچولو پــه نظرکــی درلودلو سره پــه ټولو مصارفوکی (٠ر٣٥) فیصده ټوله سرمایه‌ګذاری دکرهنی په‌برخی کی او ٧ر٣١فیصده دمعادن او صنایع په برخه‌کی په مصرف‌رسیږی . دترانسپورت او اجتماعی خدماتو سکتور په ترتیب‌سره٤ر٩ فیصد او٩ر١٠فیصدد‌ټولی سرمایه ګذاری تشکیلوی .

هرکله‌که یواځی ددولتی سکتور دپانــګی‌توزیع مدنظر وګڼل‌شی دا‌خبره به‌واضح شی چه په خلورم پلان‌کی‌دکرهنی دسکتورپه‌برخه‌کی ٩ر٣٨ فیصده دمعادن اوصنایعو دسکتور په برخه ٤ر٣٥ فیصده اوداجتماعی خدماتــودسکتور په برخه‌کی ٢ر١٢فیصده اودمواصلاتو دسکتور په سلوکی ٤ر١٠ صورت‌نیسی .

په خلورم پلان‌کی ټوله اضافه پانګه‌ددریم پلان په نسبت ٤٩ په‌سلوکی زیاتره‌ده‌دکرهنی په هــکــله نسبی سهم او زیــا توالی ددی‌ښکارندوی دی چه نوموړی سکتور به مهم او عمده نقش داقتصاد په انکشاف کی ولری‌دمخابراتو اومواصلاتو دسکتور تنقیص داشئی چه مولده پروژو نسبی سهم په‌ټولو سکتورونوکښی زیات شوی دی .

داقتصادی زیربنا دجوړولو پانګی تناسب‌چه‌په دوهم پلان‌کی ٨١ فیصده اوپه دریم‌پلان کی‌په سلوکی ٥٦ دټولی مجموع وه په خلورم‌پلان‌کی ١ر٣٤ فیصده کاهش پیداکوی. پــه خلورم پلان‌کی ٧ر١٨ ملیارده افغانی یاپه‌سلوکی٦ر٦٧ په انتقالی پــروژو او٢ر٨ ملــیارده افغانی یا ٣ر٢٩ فیصده په‌نویو پروژوکی په‌مصرف رسیږی . هــمداشانی ٨٦٢ر٠ ملیارد افغانی یا١ر٣ فیصده دانکشافی احتیاطه دپاره‌ساتل شوی دی .

**ب‍ـ دتمویل منابع :**

دخلورم پلان دمصارفو دتمویل دپاره‌لاندنی‌منابع په نظرکی نیول شوی دی .

ددولت عواید دداخلی اته‌ګونو ابوابو لــه‌مدرکه ٤ر٤٠ ملیارده افغانی تخمین او ٢ر٣ ملیارد افغانیو په شمول چــه دلاندنیو نــویومنابعوڅخه په‌نظرکی دی :

په‌ملیارد

| ابواب | عناوین | دریــم پــلان افغانی | دریــم پــلان فیصدی | خلــورم‌پــلان افغانی | خلــورم‌پــلان فیصدی |
|---|---|---|---|---|---|
| ١٠٠ | مستقیمه مالیه | ٢ر٣ | ٩ر٢ | ٥ر٥ | ١٣ر٦ |
| ٢٠٠ | غیر مستقیمه مالیه | ١٢ر٩ | ٥١ر٠ | ١٧ر١ | ٤٢ر٣ |
| ٣٠٠ | دخدماتو او جایداد دخرڅلاو عواید | ٣ر٥ | ١٣ر٨٠ | ٧ر٩ | ١٩ر٦ |
| ٤٠٠ | دجواز نامی او لایسنس دخرڅلاو عواید | ٠ر٨ | ٣ر٢ | ١ر٣ | ٣ر٢ |
| ٥٠٠ | دپیسو او جایــداد ـ إستعمال عواید | ٠ر٦ | ٢ر٤ | ١ر٩ | ٢ر٣ |
| ٦٠٠ | ددولتی تصدیو عواید | ٤ر٥ | ١٧ر٧ | ٦ر٦ | ١٦ر٣ |
| ٧٠٠ | نور عواید | ٠ر٤ | ١ر٥ | ٠ر٧ | ١ر٧ |
| ٨٠٠ | غیرحقیقی عواید | ٠ر٣ | ١ر٢ | ٠ر٤ | ١ر٠ |
| | ټــول : | ٢٥ر٣ | ١٠٠ | ٤٠ر٤ | ١٠٠ |

مستقیم مالیات چه دخلکو ، موسسو او ځمکې مالیات بر عایدات دی د ٥ر٥ ملیاردو په حدودکې تخمین کیدای شي‌چه ددې جملې‌څخه دځمکو او مواشي مالیه ٢ر٠ ملیارد افغانی اټکل کیږي .

غیر مستقیم مالیات تقریباً ٣ر٤٢ په‌سلوکې دعواید و مجموع تشکیلوي . ددولت دعوایدو مهمه منبع دولتي تصدی گانې دی چه‌دپیشبیني شویو داخلي عوایدو په سلوکې ٣ر١٦برخه احتواکوي .

شوروي ته دطبیعي گاز دصا درولو له مدرکه عواید ٩١ر٠ ملیون دالره دخلورم پلان په دوران‌کې تخمین شوی دی . په‌دی‌وخت کې ١٥ر٠ ملیارد متر مکعب گاز په شوروی اتحاد ته صادر شي دکانونو دخر څخه له درکه عواید چه‌په هغوکې د استخراج وړ معدنونه اونوی معدنونه شامل دی‌لکه‌کرومیت او باریت په مجموعي توگه ٤ر٨ ملیون دالره تخمین شویدی همدا‌شانې داملاکو د خر‌څلاو عواید ددولت اموال‌محصول او خدماتو عواید ٩ر٧ ملیارد افغانی پیشبیني شوی‌دی .

داستهلاکی موادو امداد‌چه دخارجي هیوادو څخه یادقرضي په شکل اویا دامداد بلاعوض په شکل په خلورم پلان‌کي لاس‌ته راځي ٩ر٦ ملیارد افغانی دلاندنیو مدارکو څخه‌په نظرکې نیول شویدی:

| | مقدار په زرټنه | بیه په ملیارد افغانی |
|---|---|---|
| ١ـ غنم | ٥٩٠ | ٢٠ر١ |
| ٢ـ بوره | ١٨٠ | ٢٦ر١ |
| ٣ـ نفتی مواد | ٤٠٤ | ٢٣ر١ |
| ٤ـ کیمیاوی‌سری | ٥٢٨ | ٤٨ر٠ |
| ٥ـ نباتي غوړی | ١٠ | ٢٨ر١ |
| ٦ـ ټول مواد | | ٦٤ر٠ |
| ټول | | ٠٩ر٦ |

داستهلاکی موادوخرڅلاوله مدرکه‌عوایدچه‌په دریم پلان‌کې ٨ر٣ ملیاردوی په خلورم پلان کې ٩٩ر٦ ملیارد افغانی یا٥ر٦٠ فیصدزیاد شی دمرکزی بانك قرضه یادبودجي دکسرته تمویل په خلورم پلان‌کې ٧٢٦ر١ ملیون‌افغانی کیږی‌چه ددریم پلان په تناسب ٢ر٢٥فیصده کمی‌دی. داخبره دمالي توازن اودافغاني بیی دنسبي استقرار نښه په‌خلورم پلان‌کې شئي.

خارجي پروژوی‌کمکونه چه‌دانکشافي‌مصارفو دتمویل په هکله یوه مهمه‌منبع‌ده ٤٨ر٠فیصده ددولت دانکشافي ټولو مصارفو او١ر٤٣فیصده دټولي سرمایگذاری په خلورم پلان‌کې تشکیل کوی. په خلورم پلان‌کې دخارجي پورونوحجم ٣ر١٢ ملیارد افغانی چه ٤ر٢٩٤ ملیون دالره کیږی ددریم پلان په مقایسه٣٥ په سلوکښي زیاد دی .

خرنگه چه وویل شول ٤ر٢٩٤ ملیون‌دالره چه ٣ر١٣ ملیارد افغانی کیږی دخارجي‌منابعو څخه دخلورم پلان دانکشافي پروگرام‌دتمویل دپاره پیشبیني شوی‌دی. نوموړی پیسي چه یوه اندازه تخنیکي امدادهم پکښي شامل‌دی دلاندنیو منابعو څخه تهیه کیږی :

«په ملیون دالره»

| | دقرض میزان او پروژی امداد | فیصدی |
|---|---|---|
| ١ـ شوروی اتحاد | ٥٩٩ر١٠٤ | ٥ر٣٥ |
| ٢ـ دامریکا متحده ایالات | ٦٢٦ر٥٦ | ٢ر١٩ |
| ٣ـ دالمان اتحادی جمهوریت | ٢٠٥ر٣٦ | ٣ر١٢ |
| ٤ـ ملل‌متحد اوجهاني بانك | ٨١٢ر٣٥ | ٣ر١٨ |
| ٥ـ آسیایی بانك | ٠٧٨ر٤ | ٥ر١ |
| ٦ـ یوگوسلاویا | ٥٠٠ر٤ | ٦ر١ |
| ٧ـ دچین جمهوریت | ٧٤٤ر٨ | ٩ر٢ |
| ٨ـ نوری منابع | ٣٩٥ر٦ | ٢ر٢ |
| ٩ـ دنورو منابعوڅخه متوقعه | ٣٤٦ر١٩ | ٥ر٦ |
| مجموع | ٣٨٥ر٢٩٤ | ١٠٠ |

څرنگه چه لیدل کیږی دټولو پیسو دجملی څخه‌چه ۲۹۴ر۴ملیون‌دالره کیږی ۵ر۳۵فیصده دشوروی اتحاد څخه او۲ر۱۹فیصده دمتحده‌ایالاتو او۳ر۱۲فیصده‌دالمان داتحادی‌جمهوریت څخه پیشبینی شوی دی. علاوه پردی‌دجهانی بانك اوملل‌متحده څخه ۳ر۱۸فیصده او۵ر۲ فیصده دآسیایی بانك څخه ۹ر۲ فیصده‌چین‌دجمهوریت څخه لاس‌ته راځی. یاپه بل‌عبارت دټولو پیشبینی شویو پیسو دجملی څخه‌په خلورم پلان‌کی ۵ر۹۳فیصده پروژی نسبتا واقعی قرضی او۵ر٦ فیصده متوقعه دی.

خصوصی سرمایه گذاری چه په دریم پلان‌کی‌ئی ۸په‌سلوکی انکشافی سرمایه‌گذاری احتوا کوله په خلورم پلان‌کی ۳ر۱۰ فیصده انکشافی مصارف تشکیلوی. په دریم‌پلان‌کی دخصوصی سرمایه‌گذاری مجموع د۷ر۱ ملیاردافغانی څخه عبارت‌و اوداهیله شته چه‌په‌خلورم پلان‌کی دخصوصی سرمایه‌گذاری میزان۲ر۲۳افغانیوته جگ کړی شی .

(په ملیاردافغانی)

| | دریم پلان دپانگی اچول | فیصدی | دخلورم پلان دپانگی اچول | فیصدی | دریم پلان‌ته |
|---|---|---|---|---|---|
| انکشافی مصارف | ۲۰ر۷ | ۱۰۰ | ۳۰ر۹۳ | ۱۰۰ | ۱۴۹ر۰ |
| دتمویل منابع : | | | | | |
| (پروژی) خارجی أمداد | ۹ر۸ | ۴۸ | ۱۳ر۳۴ | ۴۳ر۲ | ۱۳۵ |
| دداخلی عواید ومازاد | ۲ر۱ | ۱۰ | ٦ر۵۷ | ۲۱ر۳ | ۳۱۲ر۹ |
| داستهلاکی مواد ومازاد | ۳ر۸ | ۱۸ | ٦ر۱۰ | ۱۹ر۷ | ۱٦۰ر۵ |
| دخصوصی سرمایه‌گذاری برخه‌اخیستل | ۱ر۷ | ۸ | ۳ر۲۰ | ۱۰ر۳ | ۱۸۸ر۲ |
| دمرکزی بانك څخه إستقراض | ۳ر۳ | ۱٦ | ۱ر۷۲ | ۵ر۵ | ۵۲ر۱ |

ددولت د داخلی عوایدو مازاد په خلورم پلان‌کی دانکشافی پروژو دتمویل په لارکی دنویو عوایدو په نظرکی درلودلو سره ۵۷ر٦ ملیارد افغانی اوبیله دنویوعوایدو څخه۲۷ر۳ ملیارد افغانی‌ته رسیږی‌چه ددریم پلان دمازاد په‌مقایسه ۱ر٦۰ فیصده زیات دی‌اماکه مالیاتو تطبیق اونوی عواید په نظرکی ونیول شی‌چه هغه صورت‌کی ددریم پلان په مقایسه تقریبا ۲ر۳ برابره دعواید مازاد زیات‌دی اوپرداخلی منابعو داتکا په لوری‌دیوه أبتدائی قدم‌دشروع زیری ورکوی .

دداخلی عوایدو په مجموع‌کی ۴ر۴۰ملیارد افغانی دنویو منابعو څخه شاملی دی‌چه٦ر۴٦ فیصده دهغو څخه دځمکو اومواشی مالیات او ۸ر۱۲ فیصده دځمکو دخرڅلاو او۲ر۲۱ فیصده دنفتی موادو قیمت دلوړوالی‌او۴ر۱۹ فیصده دپروژو دتجهیزاتو خرڅلاو تشکیلوی.

| دنویو عوایدو منابع | په ملیارد افغانی | فیصدی نظرپه مجموع |
|---|---|---|
| ۱ـ دځمکواومواشی مالیات | ۱ر۴۹۰ | ٦ر۴٦ |
| ۲ـ دځمکو خرڅلاو | ۰ر۴۱۰ | ۱۲ر۸ |
| ۳ـدنفتی‌موادو دبیی‌لوړوالی | ۰ر٦۸۰ | ۲۱ر۲ |
| ۴ـ دتجهیزاتو خرڅلاو | ۰ر٦۲۰ | ۱۹ر۴ |
| مجموع: | ۳ر۲۰ | ۱۰۰ر۰ |

**دوهم ـ دورکړی بیلانس اوتجارت :**

دداخلی منابعو څخه د اسعارو دلاس‌ته راوړلو دمشکلاتو اوخارجی پورونو د ورکړی فشارسره سره ځینی لاری چاری لټول کیږی

ترڅوچه خارجی تجارت اودورکړی بیلانس دهیواد دنورو شقوقو سره یوځای انکشاف وکړی. څرنگه چه دورکړی دبیلانس دجدول ارقام ښیی‌چه داسعاری‌عوایدو مجموع‌دتجارتی صادراتو اوطبیعی گاز اومعدنی موادو اونورو

صادراتی اقلامو په‌گډون دخلورم پلان په دوران‌کی ۲ر۵۰۲ ملیون دالره‌ته به ورسیږی چه ددریم پلان د٦ر۴۰۸ملیون دالره‌په نسبت ۹ر۲۲ فیصده زیاتوالی ښیی .

په خلورم پلان‌کی دتجارتی وارداتومجموع ۰ر۴۲۸ ملیون دالره محاسبه کیږی. چه‌دارقم نظر دریم پلان‌ته ٦ر۳۵۷ ملیون دالره‌یا۷ر۱۹ فیصده زیاتوالی ښیی. دصادراتو او وارداتو دمقایسی څخه داخبره واضح کیږی چه په خلورم پلان‌کی د صادراتو ارزش نسبت وارداتوته ۲ر۷۴ ملیون دالره زیات دی .

دتوریزم دمحلی مصارفو سفارتخانو اود خارجی نمایندگیو له مدرکه عواید په خلورم

بلان‌کی ٥ر٩٨ ملیون دالره‌بالغ کیږی.دتوریزم‌دعوایدوسهم ٠ر٥٧ ملیون یا ٥ر٥٧ فیصده دپورتنیو عوایدو څخه تشکیلوی .

| | دریم پلان (ملیون دالر) | خلورم پلان (ملیون دالر) | دخلورم پلان فیصدی نظر دریم پلان ته |
|---|---|---|---|
| عوایډ : | ٤٧٤ر٦ | ٦٠٠ر٧ | ١٢٦ر٥ |
| صادرات | ٤٠٨ر٦ | ٥٠٢ر٢ | ١٢٢ر٩ |
| دخارجی نمایندگیو مصارف | ٤٢ر٦ | ٤١ر٥ | ٩٧ر٤ |
| دتوریزم | ٢٣ر٤ | ٥٧ر٠ | ٢٤١ر٥ |
| تادیات: | ٤٧٨ر١ | ٦٤٢ر٤ | ١٣٤ر٣ |
| واردات | ٣٥٧ر٦ | ٤٢٨ر٠ | ١١٩ر٧ |
| دافغانی نمایندگیومصارف په‌خارج کی | ٧ر١ | ٩ر٠ | ١٢٦ر٧ |
| سفر خرڅونه اوسهمیی | ١٠ر٠ | ١٠ر٠ | ١٠٠ |
| دولتی تضمین شوی کورونه | ١٠٣ر٤ | ـ | ١٨٨ر٩-١٩٥ر٤ |
| کسر اومازاد ( + او- ) | ٣ر٥ | ٤١ر٣ | |
| سهویات ( + او- ) | ٠ر٣ | | |
| دتادیاتو دبیلانس تفاوت ( + او- ) | ٣ر٨ | ٤١ر٧ | ـ |

څرنگه چه پورتنی جدول څخه معلومیږی په خلورم پلان‌کی داسعاری عوایدو مجموع ٧ر٦٠٠ ملیون دالره تخمین شوی‌چه دریم‌پلان په نسبت ٦ر٤٧٤ ملیون دالره څخه ٥ر٢٦ فیصد په اندازه زیات دی .

په خلورم پلان‌کی اسعاری تادیات ٤ر٦٤٢ ملیون دالره پیشبینی شوی دی‌چه ددریم‌پلان د ١ر٤٧٨ ملیونو دالرو په مقایسه د ٣ر٣٤ فیصدو په اندازه‌زیات شوی‌دی. د اسعاری عوایدو اوتادیاتو دمقایسی څخه داواضح‌کیږی چه‌په خلورم پلان‌کی دبیلانس کسر تولـی ٧ر٤١ دالره کیږی‌چه دورکړی دبیلانس‌کسر دخلورم پلان په لمړی دوهم او دریم کال‌کی دملاحظې وړدی. اوپه‌ترتیب سره ٩ر١٠-٢ر١٤ او ٥ر٩ملیون دالره پیشبینی شویدی.دخلورم پلان په دوو آخرنیو کلوکی دورکړی دبیلانس کسر په‌ترتیب سره ٣ر٥ او ٨ر١ ملیون‌دالره ته به‌کاهش پیداکړی. په خلورم پلان‌کی‌نظر دریم پلان ته د افغـانستان صادرات ٩ر٢٢ فیصده زیات کیږی‌چه طبیعی گـاز اوعنعنوی اقلامو پکښی برخه‌اخلی. د عنـعنوی اقلامـو دصادراتو په برخه‌کی ٨ر١٢فیصده زیاتوالی اودگاز اونورو نـویو اشیا پـه صادراتوکـی ١ر٩١ فیصده زیاتوالی نسبت دریم پلان تـه واقع کیږی. دطبیعی گاز عوایډ ١ر٥٣ملیون دالرو څخه ٠ر٩١ دالروته پورته‌کیـږی علاوه پردی په خلورم پلان‌کـی داتـوقع شته چـه ٤ر٨ ملیون دالره دمعدنی نـویو مدارکـو له خرڅلاو څخه لاس‌ته راشی .

دصادراتو جریان زیاتوالی په منځنی توگه په خلورم پلان‌کی‌په‌کال‌کی ٦ر٤فیصده‌پیشبینی شویدی په‌داسی‌حال‌کی‌چه‌ددریم پلان‌دازیاتوالی په‌کال‌کی ٨ر٣ فیصده تخمین‌شوی‌و. دصنعتی

دستگاو دپه‌کار اچولو اوددولتي ورکشاپونـو شخه زیاته‌استفاده‌کول اودخصوصي‌ورکشاپونو احداث په وارداتوکی ددریم پلان په نسبت دملاحظې وړ تغییر کوی‌همداشاني دتیل‌اوتیوب دموتر پرزه‌جات تراکتور اونورو وسایل‌به‌په دوهمه درجه زیات شي .

په شلورم پلان‌کي ټول واردات ۴۲۸٫۰ مليون دالروته رسیږی‌چه‌ددریم پلان‌په۳۵۷٫۶ مليون دالرو په نسبت زیات او ۱۹٫۷ فیصده زیاتوالي ښيي دوارداتو کلني‌متوسط زیاتوالي په دریم پلان‌کي ۸٫۲فیصده اوشلورم پلان‌په دوران‌کي ۳٫۹فیصده تخمین شویدی .

دشلورم پلان دسرمایه گذاری دتطبیق په چوکات‌کي ښيي‌چه دهیواد داقتصادي ودي‌په هکله په پودکتني‌وړ تغییر نظرددریم پلان‌ته راشي .

په ملي محصولاتوکي دتولیدي ساحاتونسبي سهم په نظرکي نیولوسره چه وروسته دپلان په خلاصه‌کي به ذکرشي دانکشافي فعالیتـو سهم دشلورم پلان‌دسرمایه‌گذاری په‌چوکات‌کي داقتصادي اواجتماعي مختلفو شقوتوپه هکله په لاندې دول توضیح کیږی .

# پښتونستان

پښتونستان دهغې خاورې نوم دی چه پښتانه اوسیدونکی ئی ، ددېرې تاریخي زمانوراهیسي په ننګیالیتوب مېړانه ، آزادی غوښتلوکي جهانی شهرت لري مخصوص په ۱۸ او۱۹ عیسوي پیړۍکي ددې ملت مجاهدې اومبارزې دلوېدیځ استعمار اواستثمار په مقابل کې نه هېرېدونکي خاطرې لري اودنړۍ دآزادۍ غوښتلو اوملي خود ارادیتدمبارزودحاصلولو دتاریخ په پاڼوکي په طلائي اوبرجسته تورو سره لیکلي شوي دي .

دغه خاوره دشمال څخه پهافغانستان اوځه برخهئې په ایران دجنوبڅخه دعربوپهبحیرې اوله ختیځ څخه په پاکستان پورې موښتیده داباسین رودچه اندس نومېږي په زیاتـرو برخوکي دپښتونستان اوپاکستان فاصلحدونه جوړول اوسیدونکيئې بـالعموم پښتانه او بلوڅان دي .

دغه سیمه چه دزړوتاریخ له مخه دآریانـا یوه برخه تشکیلوی تراوسهئېپه خپلمنځکي هرهبرخه ځانته بیل نوم لري اوټوله پهکلتور، تاریخ ، ثقافت ، مشترکه ده په هر وختکي ترنوی اداری لاندېوه اوکله کلهچه دبلاندې له خوا دبیګانهو کوم چپاوړ راغي نوددغـې سیمې دهرې برخې خلك بهیې پهاتحادپرخپل ضدراپاڅول نوداوجه وهچه دلته هیڅیوخارجي قوت دحاکمیتبقانه ده پیداکړی ددغې سیمې بومیکلتور تلداسې پهخپل وقت باقي پاتهو کلهچه به خارجي قوت دلته حاکم سونو پـه نیستي اونابودۍ به محکوم کیدی اوکه بهئې په موقتي ډول بقا وموندله، نوکلتور بهیـې حتماً ددغيسیمې دبومي کلتورتابعواوداانکشاف لاربه يېهم هغهوخت ممکن کیدله چه دغـه شرط بهئيدرلود. نونسمهپیړۍچه ځونهداروپا اوختیځ په تاریخکي دلویوواقعاتو زیږیدونکي

دهدپښتونستان پهتاریخ کيهم دغومره موثره ده، پهدغه پیړۍکي انګلیسي استعمارچهمندته را رسیدلي وپښتو نستان تهئيپه وینو ترې منګولي راورسیدې اوغوښتلئيچه ددې سیمې دخلکو ترغاړه دغلامۍ پړیوتړي خوخرنګه چه دلته دتاریخ په مشاهدیدسکندر اومغولوسره دمبارزې لوی صحنيتیرې شویدینوامپریالیزم دهغه څخه عبرت وانهخیست اوهغه کارتهئې لاس واچاوهچه په نتیجهکي ددې سیمېافتخار اودااستعمار نفرین دتاریخ جزوګرزید .

په دغه پیړۍکي دافغانانو او انګلیسانـو ترمنځ دوې لوئې جګړې وسویچه په هغوکي زمونږ پښتونستان ورونو لویه برخه درلوده.

دلاهور معاهدهچه د۱۸۳۸ کال دجون په ٦ دشاه شجاع اورنجیت سنګ اودهند دګورنر جنرال دنماینده ویلیم مکناتن ترمینځ وشوه په داسې شدید یوعکسالعمل بدرګه شوهچه ۱۷ زره کسه انګلیسي لښکردهغهپه بدلهکي نیست اونابود شول. انګلیسانو بیاهم عبرت وانهخیست اوخپلې ظالمانه پالیسيته ادامـه پسې ورکړیچه دافغان اوانګلیس دوهمهجګړه هم ددغوعللو څخه وزیږیده .

په ۱۸٤۳کي انګلیسانو سیند ترخپلاشغال لاندې راوست اوپه ۱۸٤۸کيئې پنجاباشغال کړ اوله دې سرهئې پهخپللاس دراپورتهسوي رنجیت سنګـه متصرفات، هیڅ ډول حقوقـي جنبهئي نه درلوده،اشغالکړل اودسیندترغاړې پورېئې دافغانستان ختیځ ولایات دبرتانیـه متصرفات وبلل، دانګلیسانو پرلهپسيمداخلو اودافغانستان اقتصادي محاصرې عادي حالات وران کړل اوپه دېپسيئي د(جمرود) پهنامه دوی معاهدېمینځته راغلیچې بیاهم هرهیـوه پهیك جانبه ډولدانګلیسانو پهګټهوهلههمدغې

نیټې څخه دشمال لویدیځ سرحد استعماري جغرافیائي اصطلاح منځ ته راغله، انګلیسانو تردې وروسته پښتونستان دشمال لویدیځ سرحد په نامه یادکړ اوکله چه دګندمك اودیورند معاهدې په جبراوزور تحمیل سوې نوددې استعماري اصطلاح رسمي شکل پیداکړ اوپه لیکونوکې انګلیسانوشمال لویدیځ سرحد یوه خاصه اوحساسه سیمه وشمیرله دهغه جریان په ضمن کې چه ددې سیمې دسرنوشت په سوبه کې استعمار چپاو راوړ نو دشمال لویدیځ سرحداصطلاح منځ ته راغله خوواقعبینان اوهغه کسان چه دولسونو اوملتونو تاریخي هویت دهغوپه حق سرنوشت کې موثربولي هیڅ کله په دې قانع سوی نه دي چه د شمال لویدیځ سرحد اصطلاح یوه حقوقي اصطلاح وبولي بلکه حقیقت دادی چه داسیمه د خپل ولس سره دثابتو حقوقو لرونکې دې چه دبین الدول دحقوقو دټولو پرنسیپونو مطابق دخپل سرنوشت حق لري چه په خپله تعیین کړي .

دپښتونستان دملي نهضت په قضیه کې دهرپښتونستاني او افغان شعور او احساس ددې سجې تودو سیاسي اونظامي ماجراګانو وینښ کړی دی اوپه طبیعي توګه دادپښتنوملي سجیه اوعالي اخلاق دي چه هرپښتون دخپل کام وطن اووروڼو سره هرځای اوپه هرحال کې چه دي، مینه اوعلاقه لري اوهرکله ئي په غم اوښادي کې ځان شریك ګڼي، دهمدغه کبله ده چه دپښتونستان دملي نهضت اوقومي تحریك برخه زموږ په عوامو اوادب کې خورا قوي اوپیاوړې ده. اوهرچا دوطن ولي اوکامولي جذبې اواحساسات پرښکاره کړي دي اوکام ئي ددغه ملي نصب العین اوولسي ارمان دحاصلولو دپاره رزمي اوحماسي خواته رابللي اومتوجه کړی دی .

ملي خودارادیت دانسانانو یوطبیعي حق دی چه ددغه حق دحاصلولو په لاره کې انسان دخپل پیدایښت څخه په یوه شکل اوبل شکل دغه حق ساتلی اویاتردې اندازې پورې ئي داحقاق په لارکې تاریخي مبارزې او مجاهدې کړي دي چه دنن ورځې په حقوقي دساتیرو اوبین المللي مناشیروکې ئي دیوحق په ځیر تثبیت کړی دی اوهیڅوك په هیڅ وجه دهغه څخه انکار نسي کولای .

افغانستان ددغه طبیعي اوقانوني حق په مصداق چه هرملت اوقوم حق لري ځرنګه چه ئي خوښه وي هغه شاني وارسي اودخپلې مرضا سره سم نظام جوړ کړي دخپلو پښتونستاني وروڼو سره چه نژادي، لساني ،تاریخي او ثقافتي علایق لري دغه حق یې تائیدوی اوپه اخلاقي معیارونو هرځای مرسته ورسره کوي .

دافغانستان ملت دپښتونستان دملت سره دهغې علاقې لرویه چه زموږ پښتونستاني وروڼو دافغانستان په ښو اوبدو ورځو کې زموږسره اشتراك کړی دی. په ښادۍ ئي ښاده ؤ اوپه غم دایم غمجن سوی دی د زړه دکومې دوستان اوخپلوان دي اودوی په هیڅ حال کې نه ئي هیرولای اونه ددوی دحال څخه غافل پاته کیدلای سي دافغانستان حکومتونو هم دغه ملي وجیبه اواخلاقي وظیفه هرکله پرځای کړې ده .

په دې سرکې د۱۸٤۹ کال څخه تر۱۸۷۹ کال پورې دانګریز داستعمار سره دپښتونستاني ولس د۳۰ کلنې مجادلې په باب کې چه امیردوست محمد خان دافغانستان داعادت په تخت ناست و اودخپل وروړملت پښتونستاني ولس دآزادي په مجادلوکې سهیم اوشریك و ددغې ادعا دمصداق دپاره دیوه انګریزکمشنر (برت ادوارد) د۱۸۵۷ کال یولیك چه پخپل یوه ملګری (پترلمړن) ته یې کندهار ته دامیردوست محمد خان داحتجاج په باره کې لیکلی دی دسند په توګه ذکر کیږي :

«راته ګرانه پترلمړن: دکابل امیردوست محمد خان زماسره ددې ځای د سرحدي قبایلو په باره کې یوه سیاسي جګړه شروع کړه اوادعا کوي چه دغه ولس هغوی سره ارتباط لري اودی غواړي چه زه (انګریزي حکومت) دهغوی سره په هیڅ ډول معامله کې مداخله ونه کړم عجبه خو داده چه دخیبر اونورسرحدخلك

دهغه (امیر دوست محمد خان) تبعه نه‌دی ماورته وویل چه ددی سیمی او خلکو څخه تاته څه‌ګټه ! دا‌خو یوه داسی معامله ده‌چه بی‌له‌دی چه‌ته پکښی له‌خپل ځانه څخه لګښت کوی‌تاته ځنی څه‌عاید نشته ...»

ځکه‌چه دخیبر او شاؤ خوا ولس خپل ځانونه آزاد ګڼی انګریزی مؤلف مستر تایلر په‌دغه باب داسی لیکلی دی :«... په‌دی ترتیب سره له همدی وخت څخه موږ دیوی شخړی سره مخامخ شوو چه په راتلونکی وخت‌کی به‌ئی په‌عمومی ډول دافغان او برتانیه روابط سره ګډوډ اوخراب کړی .

تایتلر وائی : دغه قبایل دملیت لـه مخی افغانان دی اوپه هغه خاوره کی ژوند کوی چه دابا سیند لویدیځی خواته واقع ده او داحمد شاه أبدالی دامپراطوری برخه‌وه‌داهغه وختؤ چه پښتو نستانیان د پخوانی هنـد په شمال لویدیځ کی دخپلـی آزادی دپاره لاس پرګریوان سول لکه دهروخت اوعصر‌په ځیر ورسره افغان ولس هم‌په دغو مجادلوکی شریك‌ؤ او په‌دغه لړ کی‌دامیر دوست‌محمدخان په‌عصرکی د استعمار په‌ضد د افغا نستان او پښتو نستان دملتونو ګډی مجاهدی د نمونی په‌توګه وړاندی سوی چه انګلیسانو دامیر دوست محمد خان دغه ګډی مجاهدی دهغوی سره دسیاسی جګړو په نامه بللی دی اود پیښوور انګریزی کمشنر هغه احتجاج تـه دحیرانتیا په سترګه‌کتلی دی‌اود پښتونستان دولس سره ئی مالی مرسته داسی بللی چه یعنی ددغی مرستی خوامیر ته‌څه ګټه‌نسته بلکه دخپل جیب څـخه پـه هغوی مصـرف کوی .

خو امیر دوست محمد خان دخپل ورور پښتون ولس سره په داسی حال‌کـی چـه هغوی دخپلی میړانی او موټ په قوت ځانونه خپلواك ګڼل خپله مادی او اخلاقی مرسته یی جاری ساتلی وه اودهغوی سره‌ئی‌دآزادی په‌لارکی مرسته کوله .

همدغه راز امیر دوست محمد خـان پـه پیښوور باندی دسیکانو د مداخلی اوسلطی په‌ضد دافغانستان دپاچا په‌حیث د رنجیت ستګه په خلاف جګړی کولوله پاره دافغان جګړی ئی ورسره وکړی .

لښکر سره پخپله پیښور ته ولاړ او خونړی

دامیر شیرعلیخان دسلطنت په دوره‌کی د پښتونستانیانو سره دافغانانو علایق دومره زیات او مضبوط شول چه پښتو نستانیانو امیر شیر علیخان خپل مشر اوقاید ګڼلی او افغانستان ئی دپښتانه لوی کور بللی. امیر شیر علیخان چه دیوی خوا څخه د پښتو نستان په محکومو سیموکی داستعمار په‌مقابل کی دپښتو نستا نیانو پـه‌ملـګرتیا ځرګندی مبارزی‌کولی دبلیخوائی دپښتونستان دآزادو سیمو دولس د هیـلو هـم احتـرام کاؤ دمثال په توګه : په هغه وختونوکـی چه امیر شیر عـلیخان دخپـل زوی سردار عبدالله جان دولیعهدی دمراسموجشن تجلیل کړلکه څنګه چه په‌دغه جشن‌کی د افغانستان دولس معروفو او نامتو کسانو ته دګـډون کولو بلنه اوحق ورکړه شوی ؤ په هماغه‌ډول د پښتـو نستـان د و لس نـما یـندګـان اومشهورکسیان هم‌رابلل شوی وو چه پـه هغوکی دجنوبی شمالی منځنی آزاد پښتونستان اومرکزی پښتونستان خلك شامل وو. امیر شیر علیخان په دغو مراسموکی دویناکولو په‌وخت‌کی دآزاد پښتو نستان دسیمو خلك مخاطب کړل او داسی وویل : «هلکانو او مشرانو ! تاسی ته دی معلومه وی چـه زه ستاسی دملك داخستلو مقصد او خیال نـه لرم موږ ته خدای ډیر قوت لوی ملـك او پاچاهی ، شوکت راکړی دی نوددی خبری زیات بیان ته‌حاجت نسته خوزما عرض‌صرف یوازی دادی چه‌تاسو زماپښتانه وررونه‌یاست اوموږ سره یو افغان قـام ،یووینه موسره شریکه‌ده نن ددنیا قامونو ترقی وکړه دعلم اوترقی په برکت په دنیاکی ښه نوم لـری تاسی هم دعلم اوپوهی دغه نیك کارته توجه وکړی او خپله ګټه اوزیان و پیژنی زه‌که څه‌هم په تاسو کی پاچایم خوپه قومیت‌کی ستاسو قام یم .

**دسرطان لومړی :**

دمستظرفه صنایعو دپاره دوبلیو جوړولو دستگاه دقرآن عظیم الشان دځو مبارکوآیتونو له تلاوت نه و روسته دکانو او صنایعو دوزیر انجنیر محمد یعقوب لعلی له خوا پرانستیله شوه .

**دسرطان ۲ :**

دسری میاشتی دعالی ټولنی درئیس گران والاحضرت شهزاده احمد شاه په حضور عالی غونډه دصدارت عظمی پهماڼی کښی دزیاتی مرستی دتنظیم او ترتیب په منظور دهرات ، غور ، بادغیس ، فاریاب دمصیبت ځپلو سیمو سره جوړه شوی وه .

**دسرطان ۳ :**

دکوفی پهخط دقرآن عظیم الشان د تفسیر خوپاڼی چهپه غالب گومان سره دهجری‌څلورمی پیړی پـه وروستیو اود پنځمی پیـړی پـه لومړیو وختونو کښی یعنی نژدی نهه سوه کاله پخوا لیکلی شویدی داطلاعاتو او کلتور دوزارت دعامه کتابخانو دریاست له خواچاپ شوی دی .

**دسرطان ۳ :**

دافغانستان او ولسی چین د جمهوریـت ترمنځ دپروان داوبو لگولو دپروژی دمرغانو دپروژی اود وریښمو دچنجیو دروزلو دپروژی دکیمیاوی موادو او سامان دماشین آلاتو د تهیه کولو دتړون بشپړو ونکی ضمیمه اسناد دکرنی او اوبو لگولو په وزارت کښی‌لاس‌لیك شول .

**دسرطان ٤ :**

دزلزلی په‌اثر دبغلان دولایت د نهرین په ولسوالی کی څلور تنه مړه او پنځه تنه‌ټپیان شول دغه راز دتخار دولایـت داشکمش پـه ولسوالی‌کی پنځه تنه دکوټی لاندی شول .

**دسرطان ٥ :**

دهیواد دتودو سیمو دولایاتو دپلټونکو اود سیانس دښوونځیو دښوونکو دمعلو ماتو د زیاتولو په غرض دسیانس یومیاشتنی سیمینار دپوهنی د وزارت دسیانس پـه مرکز کښی پرانستل شویدی .

**دسرطان ٦ :**

د خوراکی او پوشاکی موادو دیوی کافی اندازی ویش چه دعلیا حضرتی معظمی ملکی له‌حضور څخه دغور دولایت دمستحقو اومصیبت ځپلو میندو او کوچنیانو دپاره لیږل شوی‌وو دنازو ویکتون دمدیری په وسیله شروع‌شو.

**دسرطان ۸ :**

دافغانی سری میاشتی دټولنی دعالی‌رئیس والاحضرت شهـزاده احمـد شاه دهمدر دی مراتب دبغلان دولایت مؤظف هیأت له خوا دنهرین دولسوالی دوروستی زلزلی مصیبت ځپلیوته ابلاغ شول اود ټولنی هغه مرستی‌یی چهغنم او چامی وی هغوته وویشلی .

**دسرطان ۹ :**

والا حضرته شهزادی بلقیس او والاحضرت جنرال سردار عبدالولی چه دالمان داتـحادی جمهوری حکومت په بلنه دیودوستانه مسافرت لپاره هغه هیواد ته‌تللی ؤ کابل ته راورسیدل «کابل‌ته بیرته راستانه شول»

**دسرطان ۱۰ :**

دخارندوی دنجونو دټولنی افتخاری عالـی رئیسه والا حضرته شهزادی مریم دلښکرگاه دخارندوی دهمکارانو دجرگه گی دپرانستلو په غرض له‌کندهار نه لښکرگاه ته ورسیدله .

**دسرطان ۱۱ :**

به‌پوره اندازه سره لـه‌هـغه خوراکی او پوشاکی موادچه دغور دولایت مستحقو میندو اوکـوچنیانو دمرستی لـپاره دعلیا حضرتی معظمی ملـکی لـه حضور را استول شوی‌ؤ وویشل شول .

**دسرطان ۱۲ :**

دافغانستان او عراق تر منځ دفرهنگی‌همکاری موافقه لیك په بغداد کښی لاسلیك شو .

**دسرطان ۱۳ :**

دفاریاب دولایت د قیصار دولسوالی‌دصحی مرکز دبنسټ تیږه کیښودله شوه .

**دسرطان ١٤ :**

معظم تـولواك هـمایونـی اعلیحضرت او علیاحضرتی معظمی ملکی دبریتانیی خارجه وزیر سرالك دگـلس هیوم او دده میرمنه دگـلخانی په ماڼی کـی اعلیحضرتینو خـپل حضورته ومنل .

**دسرطان ١٤ :**

علیا حضرتی معظمی ملکی دکال ممتازی میندی په شاهی ارگ کښی خپل حضور ته ومنلی .

**دسرطان ۱٤ :**

دخارجه چارو دوزیر ښاغلی محمد موسی شفیق پهبلنه دبرتانیی خارجه وزیر سرالك دگلس هیوم اودده ماندینه کابلته راغلل .

**دسرطان ۱٥ :**

دصدارت مرستیال دکتور عبدالصمد حامد دشوروی اتحاد دحکومت په بلنه دیو هیأت پهمشری مسکو ته روان شول .

**دسرطان ۱٥ :**

دپښتو نسیتان مشر خان عبدالغفار خان دمعالجی پهغرض دالوتکی په وسیله دالمان اتحادی جمهوریت ته لاړ .

**دسرطان ۱۷ :**

دافغانستان دشاهی حکومت اود شوروی اتحاد دحکومت تر منځ په ملکی هوایی ریاست کښی دملکی الوتکو له تښتولو څخه دمخنیوی پهباب دهمکاری موافقه لیك لاس لیكشو .

**دسرطان ۱۸ :**

شاهانه ذات دخپلو ارځښتناکو ارشاداتو په ترڅ کښی دکوچنی دروغتیا موسسه چه دهند ددولت په مرسته جوړهشویده دافغانستان اود هند ددوستانه روابطو یو ثمر ښښونکی مظهر وګاڼه .

**دسرطان ۱۹ :**

دهمایونی معظم اعلیحضر ت پهبلنه دهند جمهور رئیس جلالتمآب وی‌وی ګیری د رسمی او دوستانه مسافرت دپاره کابل تـه راورسید اود شهریاری ذات لهخوا هرکلی ورته وویل شو .

**دسرطان ۲۰ :**

دهند دجمهور رئیس جلالتمآب وی،وی‌ګیری پهویاړ سره دګلخانی په ماڼی کی دمعظم ټولواك همایونی اعلیحضرتلهخوا یومیلمستیا شوی‌وه .

**دسرطان ۲۱ :**

پهداسی حال کښی چه همایونی معظم اعلیحضرت حضور درلود دهند جمهور رئیس جلالتمآب وی،وی‌ګیری دما شومانو روغتون اود ماشومانو دروغتیا موسسه پهاکبر خانمینه کښی پرانستله .

**دسرطان ۲۱ :**

دعلیا حضرتی معظمی ملکی دهدایت پـه اساس د چغچران دنجونو اساسی ښو ونځی پرانستل شو .

**دسرطان ۲۲ :**

معظم ټولواك همایونی اعلیحضرت په ویاړ دهند دجمهور رئیس جلالتمآب وی‌وی ګیری لخوا د چهلستون پـه ماڼـی کښی میلمستیا ترتیبه شوی وه .

**دسرطان ۲۲ :**

دهند جمهور رئیس جلالتمآب وی‌وی ګیری اوځینو ملګرویی دکابل موزیم وکوت .

**دسرطان ۲۳ :**

دهند جمهور رئیس جلالتمآب وی‌وی ګیری چه دمعظم همایونی اعلیحضرت په بلنه دیوه رسمی دوستانه سفر دپاره کابل ته راغلی ؤ پهالوتکه‌کی نوی ډیلی ته لاړل .

**دسرطان ۲۳ :**

دباد غیس دولایت دغور ماچ پهولسوالی‌کی دصحی اساسی مرکز دودانی دبنسټ تیږه دزیږنتون دروغتون اودکورنیو دلار ښوونـی درئیسی میرمن نظیفه غازی نواز لهخواکیښودل شوه .

**دسرطان ۲٤ :**

دقرآن عظیمالشان دځو آیتونو د لوستلو څخه وروسته پهخیر خانه مینه‌کی د روغتیاد وزارت دعمومی‌ډیپو او مرکزی عمومی ورکشاپ دبنسټ ډبره دهغه وزارت دمعین پـو هانـد دکتور اختر محمد خوشبین په واسطه کیښودله شوه .

**دسرطان ۲٤ :**

دافغان ملت معنوی مور علیا حضرتی معظمی ملکی دهرات دولایت دبیوزلو میندو سره د مرستی پهغرض سلزره افغانی ورکړیدی .

**دسرطان ۲٥ :**

داطلاعاتو او کـلتور دوزارت د انـکشافی پروګرامونو په اساس دتالقانو عامه کتابخانه دتخار دوالی ښاغلی محمد نعیم برګی له خوا پرانیستله شوه .

**دسرطان ۲٦ :**

دافغانی سری میاشتی دټولنی دعالی‌رئیس والاحضرت شهزاده احمد شاهدهدایت پهاساس پهخیرخانه مینه کښی د افغانی سری میاشتی دټولنی دروغتیا دلوړنیو مرستو یـو مرکـز دمرستون درئیس اوددغی ټولنی د اجتماعی او

صحی خدمتونو دآمر دکتور عبدالاحد بارکزوی په‌وسیله پرانستل شو .

**دسرطان ۲۸ :**

دافغانی سری میاشتی دټولنی دعالی‌رئیس والاحضرت شهزاده احمد شاه‌دهدایت په‌اساس دمرستون دنوی ورځیرمه ودانی دبنسټ ډبره دمرستون د رئیس دکتور عبدالاحد بارکزوی په‌واسطه کیښودله شوه .

**دسرطان ۳۰ :**

په‌کندزکی نـاشر سینما تیـاتر دوستو هیوادونو ته‌دمعظم ټولواک همایونی اعلیحضرت دمسافرت دفلم‌په ښودلـه سره په فـعالیت شروع وکړه .

**دسرطان ۳۱ :**

دعراق دخارجه چارو وزیر ښاغلی مرتضی سعید عبدالباقی دخارجه چارو دوزیر ښاغلی محمدموسی شفیق په‌بلنه کابل ته راورسید .

**داسد لومړی :**

والاحضرت شهزاده شاه محمود دافغانستان هلکانو دځارندوی دټولنی افتخاری عالی‌ریاست دمراسمو په ترڅ‌کی ومانه .

**داسد ۲ :**

دفاریاب دولایت دگـر زیوان اود درزاب دولسوالیو دصحی مرکزونو د ودانیو دبنسټ تیږی دافغانستان دنیك مرغی اودگران‌ټولواك دعمر دااوږدوالی په دعا دفاریاب دوالی ښاغلی محمدگل ابراهیم خیل لخوا کیښودل شوه .

**داسد ۳ :**

معظم ټولواک همایونی اعلیحضرت دعراق خارجه وزیر ښاغلی مرتضی سعید عبدالباقی دگلخانی په ماڼی کی شاهانه حضورته ومانه .

**داسد ۳ :**

دصدارت مرستیال دوکتور عبدالصمد حامد چه‌دهیواد دانکشافی خلورم پنځه‌کلن پلان د پرمختگ لپاره دشوروی اتحاد د اقتصادی او تخنیکی مرستو دجلبولو په باب دهغه‌هیواد دمقاماتو سره دخبرو په منظور مسکوته‌تللی‌ؤ کابل‌ته راورسید .

**داسد ٤ :**

دافـغانستان او ولسی چیـن د جمهوریت ترمنځ دهوائی حمل‌و نقل موافقه لیك پـه‌ملکی هوائی ریاست‌کی لاسلیك شو .

**داسد ٥ :**

دعراق دخارجه چارو وزیر ښاغلی مرتضی سعید عبدالباقی چه دخارجه چارو دوزیر ښاغلی محمد موسی شفیق په بلنه کابل‌ته راغلی ؤ دخپلو ملگرو سره عراق ته‌لاړ .

**داسد ٥ :**

دهرات دولایت دپښتون زرغون په‌ولسوالی که دروغتیا دوزارت دلسم صحی مرکزدبنسټ ډبره کیښودل شوه

**داسد ۷ :**

دولایاتو دترافیکودمدیرانو لومړنی سیمینار په‌داخله وزارت‌کښی پرانستل شو .

**داسد ۸ :**

دمزار شریف دښار دپنځه دیرش زره ولټه سب ستیشن دیو ترانسفارمر د درولوکـار بشپړ شوی او په امتحانی صورت په کـار اچول شویدی .

**داسد ۱۱ :**

دلوگر دولایت دخروار بند بشپړ شوی او ددغه بند نه دیرش جریبه ځمکه اوبه‌کیږی.

**داسد ۱۳ :**

په هیواد کښی دغلی دخلورمی سیلوودانی دشل زره ټنه غلی په ظرفیت بشپړ شوی‌او دهغی دما شینونو دټرلو چاری روانی دی .

**داسد ۱۵ :**

دقالینو د صادرو ونکی اتحادیی کـالنی عمومی ټولنی دتجارت دوزارت په سالون‌کی په داسی حال‌کی غونډه وکړه چـه دهغه وزارت وزیرپوهنوال محمدعارف غوثی هم پکی گډون در لود .

**داسد ۱۷ :**

د خارجه چارو وزیر ښاغلی محمد موسی شفیق دغیر منسلکو هیوادو د خارجه وزیرانو په غونډه کښی دگډون دپاره جارجتون تـه ورسید .

**داسد ۱۸ :**

داارزگان دولایت د شهرستان دولسوالی داساسی صحی مرکز د بنسټ ډبره دوالـی ښاغلی عبدالرؤف ویسا په واسطه کیښودله شوه .

**داسد ۱۸ :**

د اطلاعاتو او کلتور د وزارت مسلکی مجلس چه داطلاعاتو او کلتور دوزیر ښاغلی

محمد ابراهیم عباسي په مشرۍ جوړ شو دافغانستان د لرغون پېژندنې د دوستانود دجرګه‌ګي تاسیس دلرغون پېژندنې او تاریخي آبداتو دترمیم دپاره دصندوق تاسیس او له خارجي هیأتونو سره دلرغون پېژندنې دعمومي قرار داد مسوده تصویب کړه .

**داسد ۲۰ :**

دپروان دولایت دممیزو دپاك کولو دسهامي شرکت دفابریکې دنوي ودانۍ د جوړولوچارې چه دوه‌کاله پخوا شروع شوي وې بشپړې شوي‌په فعالیت شروع وکړه .

**داسد ۲۱ :**

حاجي عطا محمد د اوقافو عالي اداري ته پنځه ملیونه افغانۍ دبسپنې په توګه‌ورکړېدې چه‌په مدینه منوره کښې دافغاني حاجیانو د استو ګنځي دودانوولو دپاره ولګیږي .

**داسد ۲۳ :**

دفاریاب ولایت دمحکمې‌دریاست داستوګنې ددریو ودانیو دبنسټ تیږه دمحکمې درئیس مولوي خواجه محمد حسن له‌خوا دمیمنې په ښارکې کینبودل شوه .

**داسد ۲٤ :**

صد راعظم دکتور عبدا لظاهر د قرآن عظیم الشان دځو مبارکو آیتونو له تلاوت نه وروسته دقرغې په بوخه‌کې دواکسین او سیروم جوړولو دانستیتوت دبنسټ تیږه کیښودله .

**داسد ۲٦ :**

د سمنګانو د ولایت دمرکز ایبکو ښل بستریزه روغتون دقرآن عظیم الشان د څو آیتونو دلوستلو څخه وروسته دروغتیا دوزارت دمعین پوهاند دوکتور اختر محمد خوشبین په واسطه پرانستل شو .

**داسد ۲۷ :**

دپروان دولایت داساسي دارالمعلمین‌کوټې او تدریسي خانګې تقریباً ددوه ملیونو افغانیو په لګښت بشپړې شویدي .

**داسد ۲۹ :**

دکابل پوهنتون د وروستیو ټلورو ، دورو یوشمیر فارغانو ته دپولي تخنیك په جمنازیوم کې دیو محفل په ترڅ‌کې ډیپلومونه و ویشل شول .

**داسد ۳۰ :**

والا حضرتې شهزادي مریمې‌او والاحضرتې خاتول په هغې تولنه‌کې‌ګډون وکړ چه‌دکورنیو دلار ښودنې دټولنې دجوړېدلو د څلورمې کالیزې په منا سبت دکابل هوټل په چمن‌کې جوړه شوي وه .

**دسنبله ۱ :**

معظم ټولواك همایوني اعلیحضرت دګلخانې له‌مانۍ څخه په شاهانه ګټورو او شاداتوسره دهیواد دخپلواکۍ دبیرته اخستلو څلورپنځوسم جشن دسنبلې په لومړۍ نېټه پرانست .

**دسنبله ٤ :**

دولایتونو دخوراکي موادودمدیرانو لومړنی سیمینار دخوراکي موادو او عامه‌اړتیاؤ دریاست په‌مرکز کې پرانستل شو .

**دسنبله ٤ :**

دخارجه چارو وزیر ښاغلی محمد موسی شفیق دآسیایي انکشاف دبانك له رئیس‌ښاغلي تاکیشي وتنابي سره دخارجه چارو په‌وزارت کې وکتل .

**دسنبله ٥ :**

والاحضرت جنرال سردار عبدالولي دشوروي اتحاد ددفاع دوزیر مار شال اندري ګریچکو په‌بلنه دیوه هیأت په مشرۍ قفقازته‌لاړ .

**دسنبله ٦ :**

دمخدره موادو په ضد د مجادلې لومړنی بین‌المللي کانګرس چه دنړۍ داوو ویشتو هیوادونو نمایندګان پکې ګډون لري دروغتیا دوزیر پو هاند دوکتور محمد ابراهیم مجید سراج په واسطه دانترکانتیننتال په هوټل‌کې په‌رسمي ډول پرانستل شو .

**دسنبله ۸ :**

دکوچنیانو ورځ دعلیا حضرتي معظمې ملکې په پیغام سره په‌ټول هیواد کښې په خاصو مراسمو ونمانځله شوه .

**دسنبله ۹ :**

دکور نیو دلار ښودنې دټولنې نولسم‌کلینیك دروغتیا دوزارت معین پوهاند دکتور اخترمحمد خوشبین په‌واسطه په‌مرکزي روغتون کې پرانستل شو .

**دسنبله ۹ :**

دپښتو نستان دملي ورځې دنمانځلو مراسم دپښتو نستان په میدان‌کې دخاصو مراسمو په

ترڅ کې دپښتو نستان دملي ورځې دبيرغ پـه پورته کيدلو سره شروع شول .

**دسنبله ۱۲ :**

فرانسوی ، ايتالوی او جاپـانی لرغـون پيژندونکو هيأتونو په آی خانم سردالر غونډی او دمير بچه کوټ دسکندر په غـونډی‌کښی په‌کيندلو پيل وکړ .

**دسنبله ۱۳ :**

دکلای ذال د ولسوالی دصحی اساسـی مرکز دوداني تيره دروغتيا دوزارت د معين دکتور اختر محمد خوشبين په وسيله ددغی ولسوالی په مرکـز آق تيپه کښی کيښودله شوه .

**دسنبله ۱٤ :**

دننګرهار دناوی دپراختيا په پروژه کـی تراوسه پوری اته شپيته زره څلور سوه پنځه اتيا جريبه ځمکه داوبو لاندی راغلی ده اوله هغی څخه ګټه اخستله کيږی .

**دسنبله ۱٤ :**

د هغو سړکونو په اوږدوکی چـه دلغمان دولايت مرکز دعلينګار ، نورستان ،عليشنګ دولسواليو سره نښلوی ددريو منځنيوپلونو او شپږو پلچکونو دجوړولو چاری بشپړی‌شوی .

**دسنبله ۱۵ :**

دچار دری دولسوالی دماما خيلو دکـلی دلومړنی ښوونـځی دودانـی د بنسټ تيـره کيښودل شوه .

**دسنبله ۱٦ :**

دسواد بين‌المللی ورځ لـه بيسوادی سره دمبارزی د کميټی دافتخـاری عـالـی رئيس والا حضرتی ليلما د پيغام په لوستلو سره دټولنو په ترڅ کی په‌ټول هيواد کی ونمانځل شوه .

**دسنبله ۱٦ :**

په افغانستان کـی د مطبوعاتو د تاسيس سلم‌کال او دمطبوعاتو دقانون د نافذيدو ورځ دلومړی ځل لپاره دمطبو عاتو دورځی په‌نامه دپاك قرآن دڅو آيتونو دلوستلو څخه وروسته دااطلاعاتو او کلتور دوزير ښاغلی محمد ابراهيم عباسی په وينا سره دمطبوعاتو په‌کلوپ کی ونمانځله شوه .

**دسنبله ۱۸ :**

دملی شوری دتاسيس دوه څلويښتمه‌کاليزه ونمانځله شوه .

**دسنبله ۱۹ :**

د«افغان بزنس ماشين» دسهامی شرکت د ودانی دبنسټ تيره دملکی هوائی او توريزم دلوی رئيس سر دار سلطان محمود غازی په وسيله په‌انصاری واټ‌کښی کيښودله شوه .

**دسبله ۲۰ :**

دخان آباد دولسوالی دودانی دبنسټ تيره ديو جريب ځمکی په ساحه کښی دکندز دوالی پوهاند دکتور محمد صديق له خوا کيښودل شوه .

**دسنبله ۲۱ :**

دفار يـاب په ولايت کښی دپستی شول مات شوی او زيات شمير خلـکو دپستی پـه راټولو شروع وکړه .

**دسنبله ۲۲ :**

دنشراتی موسسو ځينو مسلکی غړو تـه دژورنالیزم داساساتو د تدريس دپـاره‌د ژور ناليزم يو دری مياشتنی کورس دااطلاعاتو اوکلتور دوزارت دمعين ښاغلی محمد خالد روښان پـه وا سطه پـه دولتی مطبعه‌کـی پرانستل شو .

**دسنبله ۲۵ :**

دکجکی داوبو دبرښنا ددستگاه جوړول د دولت له بودجی څخه دیوسلو اتـيا مليونـو افغانيو او دامريکی دمتحده ايالاتو د پنځلس مليونو ډالرو پورپه په لګښت شروع شول.

**دسنبله ۲۷ :**

دهلمند له سند څخه داوبو دمسئلی په‌باب دافغانستان او ايران دخبرو او سنی مرحله په کابل‌کښی پای‌ته ورسيده او ددواړوخواوو ترمنځ خبری به‌په آينده کښی دوام وکړی .

**دسنبلی ۲۸ :**

دافغا نستان دلر غون پيژنـدنی دوستانو پرانستل شوه او لومړنی غونډه يی دااطلاعاتو او کلتور دوزير ښاغلی محمد ابراهيم‌عباسی په‌وينا دمطبوعـاتو دکـلوپ د محمود طـرزی په‌تالار کښی جوړه شوه .

**دسنبله ۲۹ :**

د سمنګانو د ولايـت دامنيه قومانـدانی دهستو ګنی دودانی د بنسټ تيره دسمنګانو دوالی ښاغلی عبدالصمد بخشی له خواکيښودل شوه .

**دسنبله ۳۰ :**
دمعظم همایونی اعلیحضرت دپیام په لوستلو سره دښوونکی ورځ په ټول هیواد کښې ونمانځل شوه .

**دمیزان ۳ :**
شاهی دارالتحریر دصدراعظم دکتور عبدالظاهر داستعفاء دوړاندی کولو په اساس دښاغلی صدراعظم دمعروضی په اثر اعلامیه صادره کړیده .

**دمیزان ٤ :**
معظم ټولواک همایونی اعلیحضرت اوعلیاحضرت ته معظمه ملکه انقری ته ورسیدل او دترکیی د جمهور رئیس جلالتمآب جودت سونای اومیرمن سونای له خوائی هرکلی وشو .

**دمیزان ۷ :**
دمیمنی دهلکانو او نجونو دښوونځیو ودانیو دبنسټ تیږه دفاریاب دوالی ښاغلی محمدگل ابراهیم خیل له خوا کیښودل شو ه .

**دمیزان ۸ :**
دصدراعظم دکتور عبدالظاهر د هدایت په اساس دسالنگ واټ ددوهمی برخی دجوړولو کار ددری زره او اته سوه متره په اوږدوالی دسر پرست ښاروال ښاغلی محمد کبیر نورستانی له خوا پرانستل شو .

**دمیزان ۱۱ :**
دروان کال دتیرو لومړنیو شپږو میاشتو په اوږدو کښې ددوه سوه شپیته زره اوخلیر ویشت متر مربع څخه زیاتی قالینی سږکال دموسساتو او قالینو دسوداګرو په واسطه دکابل دګمرك له لاری خارجی هیوادو نوته صادری شویدی .

**دمیزان ۱۲ :**
دتیلفون یو پنځوس لینه سوچبورد دفراه ولایت دمرکز فراه رود په ښارکښې په کار واچول شو .

**دمیزان ۱۳ :**
دسمنګانو ولایت دخلم دولسوالی په پنځه دیرش کیلو متری دفیروز نخچیر په کلی کی داوبو دګرځولو دیو بند دبنسټ ډبره کیښودله شوه .

**دمیزان ۱٦ :**
دباد غیس ولایت دقادس په ولسوالی کښې دهیواد داولسم صحی مرکز دبنسټ تیږه کیښودل شوه .

**دمیزان ۱۷ :**
دچار دری د ولسوالی دیاسوس د کلی دلومړنی ښوونځی دودانی دبنسټ تیږه کیښودل شوه .

**دمیزان ۲۲ :**
دسلطنت دمقام وکیل والا حضرت شهزاده احمدشاه داساسی قانون دنهمی مادی دځلورمی فقری دحکم سره سم دشورا ددیار لسمی دوری دځلورم کال لومړی اجلاس دمیزان په ۲۲ نیټه له غرمی نه مخکښې په خپلو ار شاداتو سره پرانیست .

**دمیزان ۲۲ :**
زمونږ دګران ټولواک همایونی معظم اعلیحضرت بختور میلاد دمیزان په ۲۲ نیټه ونمانځل شو.

**دعقرب ۱ :**
دملګرو ملتو دورځی دنمانځنی په مناسبت دصدراعظم دکتور عبدالظاهر له خوا دملګرو ملتو د موسسی د سر منشی دکتور والدهایم په نامه نیویارك ته یو پیغام مخابره شویدی.

**دعقرب ۲ :**
دنرس قابله ښوونځی دودانی د بنسټ تیږه دروغتیا دوزیر پوهاند دکتور محمدابراهیم مجید سراج له خوا دوزیر اکبر خان مینی ساحه کښې کیښودله شوه .

**دعقرب ۳ :**
دایران څخه دلس زره ټنه بوری دراوړلو موافقه دافغانی او ایرانی مقاماتو تر منځ لاسلیك شویده .

**دعقرب ۵ :**
دانګلستان دما ورای بحار دپراختیا وزیر ښاغلی ریچارد ود دخپلی ماندینی سره دپلان دوزارت په بلنه کابل ته راورسید .

**دعقرب ۷ :**
دملی عوامی ګوند مشر خان عبدالولیخان چه دسترګو دمعالجی لپاره لندن ته تللی ؤ کابل ته راورسید .

**دعقرب ۸ :**
دشل زره ټنو غلی په ظرفیت دکندهارسیلو استفادی ته چمتو شوی ده .

**دعقرب ۹ :**
دافغانستان او چکو سلواکیا تر منځ دکلنی فرهنګی همکاری پروګرام په یوه بجه دخارجه چارو په وزارت کی لاسلیك شو .

**دعقرب ۱۰ :**

دهیوکو شخه د غوړیو دایستلو ددسگاهو خاوندان هر یو په پنځلس کاله بند محکوم شول .

**دعقرب ۱۲ :**

معظم ټولواك همایوني اعلیحضرت له خیره سره هیواد ته راورسید .

دشهر یاري ذات وړونکي دکنده هار نومي سلطنتي الوتکه دمازیگر په څلورو بجودکابل بین‌المللي هوائي ډگرته راورسید .

**دعقرب ۱۳ :**

دفاریاب دولایت ددولت آباد دولسوالـي دنوي ښار دبنسټ ډبره کیښودله شوه .

**دعقرب ۱٤ :**

همایوني معظم اعلیحضرت دکوچني اختـر لمونځ له غرمي مخکښي په‌نهه نیمو بجودشاهي ارگ په جومات کښي اداکړ او دنجیب‌متدین او شاهانه وفا شعار ملت دخیر او نیکمرغي اود اسلام او بشري نړۍ دیو والي دعایي وکړه .

**دعقرب ۱٦ :**

دعقرب ۱٦ نیټه دشهید سعید اعلیحضرت غازي محمد نادر شاه د شهادت له ورځي سره مصادفه ده . په دغه مناسبت دقرآن عظیم‌الشان او صحیح البخاري شریف ختمونه و شول اود افغان دمغه میړني روح ته دعا وشوه .

**دعقرب ۲۰ :**

دملکي هوائي لوي ریاست له‌خوادروزگان دولایت دخاص روزگان اجرستان او گزاب پـه ولسوالیوکي دهوا پیژندني دستگاوي نوي‌په‌کار اچولي شویدي .

**دعقرب ۲۱ :**

دکجکي داوبو دبریښنا په جـوړولو کـي د امریکي دمتحدو ایالتونو ددریو ملیونو ډالرو دپور موافقه لیك د مالیي پـه وزارت کـي لاسلیك شو .

**دعقرب ۲۲ :**

سږکال دکندهار نه دوه زره ټنه وړې خارج ته‌صادر شویدي .

**دعقرب ۲۲ :**

معظم ټولواك همایوني اعلیحضرت مصیبت ځپلو ته دمرستو دکمیټي داجرا آتو اودخوراکي موادو په وړلو او راوړلو او ویشلوکي دمغې دمربوطو ملکي کار کوونکو او دملي دفـاع دبرخي اخستلو شخه خوښي وکړه .

**دعقرب ۲۳ :**

دهمایوني معظم اعلیحضرت له حضور شخه داردن دپاچا اعلیحضرت ملك حسین دزیږیدني دکالیزې په مناسبت دنوموړي اعلیحضرت په عنوان عمان‌ته د مبارکي‌تلگرام مخابره شوی‌دی.

**دعقرب ۲٦ :**

سږکال دهوائي ملکي او توریزم دعمومي ریاست له‌خوا په اقلیمي ورښت او کرني په چارو کښي دهوا پیژندلو ٤۱ ستیشنونه دهیواد په لیری پرتو سیمو کښي پـه کـار اچـول شویدي .

**دعقرب ۲۹ :**

دپروان داوبو لگولو دپروژې داوبو بریښنا ددستگاه دجوړولو دما شینونو ددرولو چاري بشپړي شوی .

**دعقرب ۳۱ :**

والاحضرتي شهزادي مریمي دخر ښلاو هغه بازار ولید چه‌په‌کابل‌کي دکـور دیپلو ماتیکو میرمنو د ټولني له خوا په حضوري چمن کي دنساجي افغان په‌کلوپ کي جوړ شوی وو .

**دقوس ۲ :**

دکنډز دجریدې لوموړنی گنه دمعظم ټولواك همایوني اعلیحضرت دتمثال په خپریدلو او دبناغلي محمد آصف فکرت په مسؤل مدیریت سره په‌هغه ولایت‌کي چاپ شوه .

**دقوس ۲ :**

دافغانستان دخارجه چارو وزیر دبنگله دیش دخارجه وزیر په عنوان دیو لیك په ترڅ‌کي‌د افغانستان او بنگله دیش تر منځ دورور ولي او دوستانه روابطو دزیات ټینگوالي دپاره خپل تمنیات څرگند کړیدي .

**دقوس ۳ :**

دچاریکارو دوبالي سر بند ددولت له‌بودجي څخه ددریو لکو افغانیو پـه‌لگښت جوړ شوی اوپرون اوبه پکي رواني شوی .

**دقوس ٤ :**

دافغانستان او مجارستان ترمنځ د۱۹۷۳ او ۱۹۷٤ کلونو دپاره دفر هنـگي همکاري پروگرام دخارجه چارو په وزارت کښي‌لاس‌لیك شو .

**دقوس ٦ :**
دغور دولایت دهوائی ډګر دجوړولو کار په پاخه او اساسی ډول دکار دقواوو د قوماندان تورن جنرال عبد القدیر خلیق په وسیله پرانستل شو .
**دقوس ٧ :**
دسالنګ واټ ددوهمی برخی داوارولو کار بشپړ شو او دترافیکو دتګ او راتګ دپاره چمتو شو .
**دقوس ٨ :**
دمعظم همایونی اعلیحضرت حضورته دمنځنی ختیځ دوروستیو جریاناتو په باب دمصر د جمهور رئیس پیام وړاندی شو .
**دقوس ٩ :**
دجهان نما دجریدی لومړنی ګڼه دمعظم تولواک همایونی اعلیحضرت دمبارک تمثال په چاپولو سره دسمنګانو دولایت دخلم په ولسوالی کی خپره شوه .
**دقوس ١٠ :**
دبدخشان ولایت داشکاشم په ولسوالی کی دهوا پیژندلو یوستیشن په کار واچول شو .
**دقوس ١٠ :**
دسپین زر شرکت دتیل کښلو نوی دستګاه دهغی دسړنی کمپاین دشروع کیدلو سره یوځای دکندز دوالی پوهاند دکتور محمد صدیق له خوا دحضرت امام په ولسوالی کښی پرانستله شوه .
**دقوس ١١ :**
دنرسنګ تعلیماتو سیمینار د روغتیا دوزارت معین پوهاند داکتر اختر محمد خوشبین په وینا دعامی روغتیا دموسسی په تالارکی پرانستل شو .
**دقوس ١٢ :**
دغور دولایت دمرکز چغچران په ښارکښی دهغه ځای دوالی په واسطه دبرښنا یو سل کیلواته جنریتر په کار اچول شو .
**دقوس ١٣ :**
دکتاب دبین المللی کال په مناسبت دکتاب بین المللی ننداره تـون سهار دمطبوعاتو په کلوپ کی پرانستل شو .
**دقوس ١٤ :**
شاهانه ذات ددکتور عبدالظاهر د حکومت استعفاء و منله .

**دقوس ١٦ :**
معظم تولواک همایونی اعلیحضرت داساسی قانون دنهمی مادی دیوو لسمی فقری او دنهه اتیاومی مادی دحکم په اساس دخارجه چارو وزیر ښاغلی محمد موسی شفیق دحکومت په جوړیدلو مؤظف کړ .
**دقوس ١٩ :**
دافغانستان اوترکیی ترمنځ دتیلفون مستقیمه مخابره دچینل له لاری ددواړوهیوادو په موافقه ټینګه شوه .
**دقوس ٢٠ :**
مؤظف صدراعظم ښاغلی محمد موسی شفیق خپله کړنلاره اود حکومت غړی دولسی جرګی غړوته وړاندی اومعرفی کړل .
**دقوس ٢١ :**
صدراعظم ښاغلی محمد موسی شفیق وروسته له دی چه ولسی جرګی ددوی دحکومت غړو او تګ لاری ته دباور رایه ورکړه ځرګنده یی کړه ددوی حکومت فیصله کړیده چه خپل هر مطلب په مستقیم ډول د شوری سره مطرح کړی .
**دقوس ٢١ :**
دسلطنتی تشریفاتو دریاست دخبر له مخی صدراعظم ښاغلی محمد موسی شفیق دخپلی کابینی دغړو سره دشپی په اتو بجو دګلخانی په ماڼی کی دمعظم تولواک همایونی اعلیحضرت په حضور شرفیاب شول .
**دقوس ٢٢ :**
صدراعظم ښاغلی محمد موسی شفیق دخپل حکومت له غړو سره مشرانو جرګی ته لاړ او داساسی قانون ٨٩ ـ مادی سره سم یی هغی جرګی ته خپله تګ لاره وړاندی کړه .
**دقوس ٢٣ :**
دځلوینښت زرو پنځوسو ټـنو نفتی موادو داخستلو قرار داد د افغانستان او شوروی اتحاد تر منځ دنفتی موادو په ریاست کـی لاسلیک شو .
**دقوس ٢٣ :**
درضاکارو میرمنو دانجمن رئیس والاحضرتی شهزادی بلقیس اووالاحضرت مارشال شاه ولیخان غازی دکابل فاتح د انتر کانتیننتال په هوټل کښی دبین المللی لباسونو دنندارو لیدنه وکړه .

**دقوس ۲۵ :**
دنارينه‌ؤ دنر سنگ دښوونځي دخوارلسمي دورې اوه ديرشو فارغ التحصيلانو ته دطب‌او فارمسي په پوهنځي کښې دکابل د پوهنتون درئيس پوهاند دوکتور عبدا لاحمد جاويد په واسطه شهادتنامې وويشلې شوې .

**دقوس ۲۶ :**
دکابل فاتح والا حضرت مارشال شاه‌وليخان غازي ، والاحضرت جنرال سر دار عبدالولي صدراعظم ښاغلي محمد موسی شفيق دولسې جرگې رئيس پوهنوال دکتور محمد عمروردگ اود مشرانو دجرگې رئيس سناتور عبدالهادي داوي په‌هغې ميلمستيا کې گډون وکړچه په کابل کې دشوروي إتحاد دلوي سفير له‌خوا دهغه هيواد د جمهوريت دتاسيس دپنځوسمي کاليزې په مناسبت شوې وه .

**دقوس ۲۷ :**
ديو شمير پروژونه بر سيره دسل زره‌ټنو نفتو په‌کالني ظرفيت دنفتودتصفيې يوه‌کارخانه جوړيږي .

**دقوس ۲۸ :**
دملي عوامي گوند مشر خان عبدالوليخان او ورسره هيأت دصد راعظم اود خارجه چارو دوزير ښاغلي محمد موسی شفيق سره‌دصدارت په‌ماڼي کښې وکتل .
خان عبدالوليخان او ورسره غړي له غرمې نه وروسته په يوه بجه له جلال آباد نه کابل ته راغلل .

**دقوس ۲۹ :**
مصدقه سندونه چه هغه معظم تولواك همايوني اعليحضرت او دعراق جمهور رئيس توشيح کړي‌دي د خارجه چارو په وزارت‌کې ديوې ټولنې په ترڅ‌کې داطلاعاتو او کلتور دوزير ښاغلي صباح‌الدين «کشککي» اوپه کابل کې دعراق دلوي سفير ښاغلي ناصر عبدالقادر «الحديثي» ترمنځ مبادله شول .

**دقوس ۳۱ :**
دسرحد دصوبې «مرکزي محکوم‌پښتونستان» داطلاعاتو وزير ښاغلي محمد افضل‌خان په‌يوه مطبوعاتي مرکه کښې وويل په افغانستان‌کې دخان عبدالغفار خان اته کاله استوگنې‌د پښتو نستان او افغانستان ارتباط زيات‌تقويه کړې دی .

**دقوس ۳۱ :**
په‌هغه ټولنه کښې چه داطلاعاتو او کلتور دوزارت دعملي ژور ناليزم دکورس دفارغانو دتصديق ليکونه دويشلو په مناسبت شوې ده داطلاعاتو او کلتور وزير ښاغلي صباح‌الدين کشککي دژور ناليزم دکورس فارغانوته تصديق ليکونه ورکړل .

**دجدي ۳ :**
دپښتو نستان مشر خان عبدالغفار خان‌په افغانستان کښې له‌اتو کاله استوگنې وروسته دتورخم له‌لارې پيښورته لاړ . هغه‌هيأت چه دملي عوامي گوند دمشر خان عبدالوليخان په مشرۍ افغا نستان ته راغلي ؤ هم دخان عبدالغفار خان سره بيرته پيښورته ستون شو .

**دجدي ٤ :**
والاحضرت شهزاده احمد شاه او دده‌ماندينه والاحضرته خاتول له ډيلي څخه کابل ته راورسيدل .

**دجدي ٥ :**
هغه مدالونه چه دمعظم ټولواك هما يوني اعليحضرت له حضوره دحربي پو هنتون د پوهنځيو ، دمهندسي دپوهنځي ، دتخنيك د اکاډمي ، دحربي ښوونځي او دوړو ضابطانو دښوونځي ممتازو استاذانو ته منظور شوي‌ؤ، دکابل فاتح والاحضرت مارشال شاه وليخان غازي په واسطه دحربي پو هنتون اودنوموړي پوهنځيو فارغانو ته دبري ليکونو دورکولو دټولنې په ترڅ کې هغوی‌ته وويشل شول .

**دجدي ٥ :**
دسمنگانو دولايت دخلم دولسوالي دفيروز نخچير داوبو اړولو بند بشپړ شو چه ددغه‌بند داوبو څخه دلس زره جريبه ځمکه خړو بيږي .

**دجدي ٦ :**
دشوروي اتحاد د جوړيدلو دپنځو سمې کاليزې په مناسبت دافغانستان او شوروي اتحاد ددوستي ټولنې په بلنه په‌کابل ننداري کې‌يوه ټولنه ترتيب شوې وه .

**دجدي ۷ :**
دصدراعظم ښاغلي محمد موسی شفيق‌دالمان دديمو کراتيك جمهوريت د وزيرانو درئيس ښاغلي ويلي شتوف په عنوان ديو تلگرام

په‌ترڅ کې دافغانستان او هغه هیواد تر منځ دروابطو دټینګولو دپاره خپلې هیلې ښکاره کړېدي .

**دجدی ۹ :**

صدراعظم ښاغلی محمد موسی شفیق د پوهنې دوزارت له منسو بینو او دهغه وزارت دموسسو له رئیسانو سره دپوهنې وزارت په ودانۍ کښې وکتل .

**دجدی ۱۰ :**

صدراعظم ښاغلی شفیق د صدارت په‌ماڼۍ کښې دکابل سر پرست ښاروال ، دښاروالۍ دټولنې غړو اود ښار دلس ګونو ناحیو وکیلانو سره وکتل او خبرې ورسره وکړې .

**دجدی ۱۲ :**

صدراعظم ښاغلی شفیق دصدارت دمقام‌له نیولو څخه وروسته په خپل لومړنۍ مطبوعاتي مرکه‌کې وویل مطبوعات باید دحکومت په څنګ کې دهیواد مصالح دیوه‌کل په حیث په‌نظرکې ولري او دانظریه چه حکومتي او غیر حکومتي مطبوعات په دوو موازي کرښو سره روان دي جایزه نه‌ده بلکه باید حکومتي او غیر حکومتي مطبوعات په یاې کښې سره یوځای شي اود دواړو هدف ملي هدفونوته رسیدل دي .

**دجدی ۱۲ :**

دبنګله دیش دصدراعظم شیخ مجیب‌الرحمن مخصوص نما ینده ښاغلی عزیزالرحمن ملك دافغانستان صدراعظم ته دهغه دوستانه پیغام وړاندې کولو دپاره کابل ته راغی .

**دجدی ۱۶ :**

دشیخ مجیب الرحمن پیغام دشاهانه ذات حضور ته وړاندې شو .

**دجدی ۱۸ :**

دوزیرانو عالي مجلس فیصله وکړه چه افغانستان اود المان د موکراتیك جمهوریت ترمنځ دې سیاسي روابط ټینګ شي .

**دجدی ۱۹ :**

دافغانستان دپاچاهي دولت اودسوریې‌دعربي جمهوریت ترمنځ په‌کابل کښې دهوایي حمل‌و نقل موافقه لیك لاسلیك شو .

**دجدی ۲۱ :**

دبنګله دیش دصدراعظم شیخ مجیب‌الرحمن مخصوص نماینده داکتر عزیزالرحمن ملك ډاکې ته لاړ .

**دجدی ۲٦ :**

افغانستان اودقطر امارت موافقه وکړه چه دلویو سفیرانو په‌سویه خپل سیاسي روابط ټینګ کړي .

**دجدی ۲۷ :**

همایوني اعلیحضرت دهیلمند دناوې‌دلویدیځ شمالان نوی کانال اود مارجې په ساحه کې داردو حیواني او زراعتي فارم وکوت .

**دجدی ۲۸ :**

همایوني اعلیحضرت اود شاهانه ذات ورسره کسان‌کندهار کښې خپل استوګنځي‌ته ورسیدل .

**دجدی ۲۹ :**

همایوني معظم اعلیحضرت دکندهار اوهیلمند ولایاتوته دپنځه ورځني سفرنه وروسته په کندهار نومې سلطنتي الوتکه کښې دکابل بین‌المللي هوائي ډګرته راورسیدل .

**ددلوې لومړۍ :**

ددولتي تصدیو دمحاسبي د طرزالعمل د تدریس لومړنی‌کورس‌دمالیې دوزارت‌دمحاسباتو درئیس ښاغلي محمدالله‌کاظمي په وسیله ددغه وزارت په‌مرکز کښې پرانستل شو . په‌دې کورس‌کې ددولتي‌تصدیو دمحاسبې پنځه‌ویشت تنه مدیران شامل شوي اود محاسبې د نوي تعلیماتنامې له مخې ددولتي محاسبې نوی سیستم زده‌کوي .

**ددلوې ۲ :**

دملګرو ملتو دبر مختیا پروګرام اود جهاني بانك ګډ هیأت دپلان دوزیر ډاکټر عبدالواحد سرابي سره په افغانستان کې دپلان جوړولو دمشورتي ټیم دپروژې دماهیت په باب وکتل او خبرې ئې ورسره وکړې .

**ددلوې ۳ :**

څه‌دپاسه دیو سلو اوه نوي ملیونو افغانیو په لومړۍ پانګه دپانګې اچولو دکمیټې له‌خوا شل تولیدي پروژې منظور شوې .

# مصور خبرونه



ښاغلی محمد موسی شفیق اود حکو متغړیبی دمعظم ټولواك پهحضور دشرفیابی په حال کی .
«دقوس ۲۲»



دپلان وزیر دکتور عبدالواحد سرابی اوداامریکی دمتحده ایالاتو لوی سفیر را بـرت نیومن دیو تړون دلاسلیك په نسبت یو بل‌ته مبارکی وایی
«دثور ۲٦»



معظم همایونی اعلیحضرت دشاهی ارگ په مسجد کی دکرچنی اختر دلمانځه دادا کولو وروسته لیدل کیږی . «دعقرب ۲۰»



والاحضرت شاهدخت مریم‌درضا کارمیرمنودامتعود خرخلاو دبازار ، دلیدلو په‌حال کی. دا بازار دننداړتون په ساحه کې‌دایرشوی وو . «دسنبله-۳۰»



کله‌چه شاهانه ذات‌امیر عباس هویدا‌ایران‌صدراعظم خپل حضورته ومانه په‌عکس ښاغلی محمد موسی شفیق صدراعظم هم لیدل‌کیږی.
«۲۲ حوت»



داطلاعاتو اوکلتور وزیر ښاغلی صباح‌الدین کشککی دژور نالیزم د کورس دتصدیق‌لیک دورکولو په وخت کی.
«دقوس ۳۰»



معظمه ملکه کله چه د کوچنیانو دورخې دجشن پهمناسبت یوکوچنی دتفقدموردګرزوی.
«۸ سنبله»



معظم همایـوني اعلیحضرت دلیبیا دجمهوررئیس مخصوص نماینده خپل‌حضورته ومانه .
(۱۲ حوت)



ښاغلی محمد موسی شفیق صدراعظم داردو په‌خلورسوه بستره‌ایزروغتون‌کی دسرونیالگی دیادگار په‌توگه کینوی .

په‌عکس‌کی ښاغلی پوزا نوف په‌کابل‌کی‌دشوروی اتحاد لوی سفیرهم لیدل کیږی .
«۲۰جدی»



شاهانه ذات دشوروی اتحاد دلوړوتعلیماتو وزیر دګلخانی په ماڼۍ کی خپل حضورته ومانه . (۱٦حوت)



ښاغلي محمدخالد روښان دکتاب دبین‌المللی ورځی په مناسبت د مطبوعاتو په کلوپ کی دغونډی دپرانیستلو په وخت کی لیدل کیږی



معظم تولواك همایونی اعلیحضرت پــه‌هغه‌وخت‌کی چه‌په کابل‌کی دانگلستان دنوی لوی سفیر باور لیك منی .

«اول قوس»



نباغلی صدراعظم دنشنل عوامي پار تی دمشرخان عبدالولی خان سره



معظم ټولواك همايوني اعليحضرت په هغه‌وخت‌کی چه‌دکابل په‌هوايی ډگرکی علياحضرتی معظمی ملکی‌ته هرکلی وائی . «دقوس ۲۲»



معظم همایونی اعلیحضرت پەداسی حال‌کی‌چه دهیواد دښوونکو نمایندګان ئی شاهانه حضورته منلی او شاهانه مهربانی پری‌کوی .  «دسنبله ۳۱»



ډکتور عبدا لظاهر کله چه دوهمی‌شپی دننداری په پای‌کی دګلونو دانسامبل دغړو هنر مندانو سره ګوری  (دلور ۱٦)



دکتور عبدالظاهر په نادر شاه روغتو نکی دبارو ت دچاودلی دحادثی په ټپیانو پوښتنه کوی .
(دحمل ۱۵)



داطلاعاتو اوکلتور دوزارت معین ښاغلی روښان اوپه کابل کی دچکوسلواکیی لوی سفیر دفرهنگی همکاری دپروگرام دلاسلیک کولو پـه حال کی .
«دعقرب ۱۰»



دهمایونی معظم اعلیحضرت په حضــوربناغلی سورن سنگ دهند خارجه وزیر او
دافغانستان خارجه وزیردگلخانی په‌مانبی کی «دحمل ۱۳»



داطلاعاتو اوکلتوردوزارت معین بناغلی‌روښان‌اوپه کابل کی دشوروی اتحاد لوی سفیـر
بناغلی کیکتیف په‌هغه وخت کی چــه‌دافغا نستان اوشوروی اتحاد ترمنځ دفرهنگی
اوکلتوری تبادلو موافقه لیك لاسلیك‌کوی «دثور ۷»



همایونی معظم اعلیحضرت کله چه دهند قاضی القضات په‌خپل حضور منی .
«د ثور ۱۷ »



ښاغلی عباسی دمطبوعاتو په کلوپ‌کی دافغانستان‌دمطبوعاتو سلمه کالیزه پرانیزی.
«دسنبله ۱۷ »



معظم همایونی اعلیحضرت پەداسیحال کیچەبناغلی کانالی دا امریکی د جمهور رئیس
مخصوص نماینده یی‌شاهانه حضور تــه‌منلی دی .
»دسرطان ۱۷«



پەهفه میلمستیا کی چه دوالاحضرتی‌شهزادی بلقیس له خوا ترتیب شوی‌وه د پاکستان
دجلالتمآب جمهور رئیس ماندینه میر من‌نصرت بوتو،دوالاحضر تی شهزادی بلقیس
سره خبری کوی . «دثور ۲۵ »



دګلخانې په‌ماڼۍ کې‌دمعظم ټولواک‌همایوني‌اعلیحضرت اومعظمې‌ملکې په حضوردپاکستان
دجمهور رئیس ماندینه اوددوی ملګری‌دشرف ډالۍ په وخت کې .
«دثور ۲٤»



والاحضرته شاهدخت بلقیس دوالاحضرتې‌پرنس الکزاندرا سره‌دباندینو چارو دوزارت
دډیپلمستیا ګانو په‌صالون کې دخبرو په‌حال‌کې لیدل کیږی .
«دسنبله ۳۰ »



والاحضرته شاهدخت بلقیس ،میر مـــن‌نسیم ولی‌دخان ولی‌خان دماندینی سره دخبرو پەحال کی .
«دثور ۲٦ »



دکتور عبدالظاهر صدراعظم فدرالی آلمان‌ته‌دسفر کولوپه‌وخت کي دخارجه چارودوزیر سره دکابل پەبین‌المللی هوایی‌ډگر کی‌دخدای پامانی په حال کی .
«دسنبله ۱۸ »



والاحضرت شهزاده محمد نادر دکابل د وحشي دبن حيواني موزيم دنوار دپريکولو په وخت کې .

«د ثور ۲۱»



ښاغلي محمد موسی شفيق صدراعظم دپولي تخنيك دلمړی دوری فارغ التحصيلانو ته دبري ليك ورکولو په حال کې ليدل کيږي. «دحوت ۱۰ »